


د پوهنې وزارت

# د ښوونکي کتاب

# د پښتو ژبې د تدریس لارښود

## لسم ټولګی




د پښتو ژبې د تدریس لارښود - لسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۹ هـ. ش.



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلېږي
په سينه کې د آسيا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پاميريان، نورستانيان
هم ايماق، هم پشه يان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاويدان
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

## د ښوونکي لارښود

# پښتو ژبه او ادبيات

## لسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۹ هـ.ش.

## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** د پښتو ژبې د تدریس لارښود

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** لسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکي:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۹ هجري شمسي

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو او د ښوونکو د تدریس لارښود محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، د دې لارښود څخه په ګټې اخیستنې سره، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګرانز ده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې لارښود کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړلیک

## سریزه:

## ښوونیز یا تعلیمي نصاب څه شی دی؟

په دې اړه چې تعلیمي نصاب څه شی دی، هرڅوک بېلابېل نظر لري، څوک يې درسي مفردات ګڼي او څــوک يــې درسي کتاب بولي. د ښوونې او روزنې پوهانو يې بېلا بېل تعريفونه کړي دي. تعليمي نصاب له ټاکلې پــوهې، مهــارتونو او ذهنيتونو څخه عبارت دی چې يوه تعليمي موسسه يې زده کړه د خپلو زده کوونکو لپاره په پام کې نيسي. په بله وينا تعليمــي نصاب د يوې تعليمي موسسې د ښوونيزو او روزنيزو زده کړو د پروګرام ټولې زده کړې دي چې درســي کتــاب، درســي مرستندويه توکي، د ښوونکي لارښود، تجربې او عملي کارونه پکې شامل دي. په لنډ ډول ويلای شو، چــې ښــوونيز يــا تعليمي نصاب هغه لارښود دی چې د ښوونې او روزنې ټول فعاليتونه پکې شامل او تر لاسه کول يې هدف دی.

په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي هدفونه، د افغاني ټولنې د ارزښتونو او د علــم او پــوهې د هراړخيــزې پراختيا په پام کې نيولو سره ښوونې او روزنې ته د يوې ټولنې د اړتياوو پر بنسټ ټاکل شوي دي. تعليمي نصاب تل د بدلون په حالت کې دی او د بشري ټولنې ورځينو غوښتنو ته د ځواب ويلو په خاطر لا پسې غوړېږي او پراختيا مومي.

هغه څه چې نن يې د ښوونې او روزنې د ماهرينو پام ځانته اړولی، ددې پوښتنې ځواب دی، د مفرداتو چمتو کوونکي او د درسي کتابونو ليکوال بايد په ټاکلو لارو چارو څه شی، څرنګه او څومره زده کوونکو ته ورزده کړي چې په اوســني او راتلونکي ژوند کې يې ګټور وي؟

ټول په دې نظر دي چې کوچنيان په بېلابېلو شرايطو کې وده کوي او په راتلونکې کې له نــوو موضــوعګانو ســره مخامخ کېږي. له دې امله زياتره ددې پېژندل ډېر سخت دي، چې هغوی ته د څه شي زده کړه اړينه او د څه شي ورته نه ده او د زده کړې تر ټولو اغېزمنه لاره کومه يوه ده.

له بله پلوه د ځوانۍ پېر د خپلواکې پرېکړې د نيولو، د مسووليت د منلو، راتلونکې ته د کتنې او په مسايلو کــې بيــا غور په څېر ځانګړتياوو له مخې دا پېر له نور پېرونو څخه جلا کوي. ځوانان له ټولنې سره رغنده راشه درشه او د لويانو نړۍ ته د ورننوتو لپاره د بېلابېلو وړتياوو موندلو ته اړتيا لري. هغوی بايد پوه شي هغه ټولنه څنګه ده چې دوی پکې اوســېږي او څومره پوهه او علمي وړتياوې ورته پکار ده. هغوی ځان پېژندنې ته اړتيا لري، پېښو او حوادثو ته څنګه ګوري، حقايق څنګه درک کولای شي، څنګه انتخاب کولای شي او څنګه عمل کوي؟ هغوی هغه پوهې ته اړتيا لري چې يې فکر کولو، مطالعې او په ټولنيز ژوند کې تحقيق ته وهڅوي.

پورته وينا ته په پام د (اړوند ټولګې) د درسي مفرداتو په چمتو کولو کې، په داسې حال کې چې له علمي اړتياوو سره تړاو لري، د زده کړې په نوو لارو چارو ټينګار شوی، ترڅو زده کړه د پخوانيو لارو چارو پرځای پر هغه زده کــړې ډېــر ټينګار وشي چې د فعالې،ګډې، ابتکاري او انتقادي زده کړې په لارو چارو ولاړه وي.

په فعالې او ګډې (مشارکتي) زده کړې يا فعالې زده کړې (Active Learning Method) کې ښــوونکی د تدريس په بهير کې ستره ونډه لري. د ښوونکي دنده په دې نقش کې د معلوماتو او پوهې په لېږدونه پای ته نه رسيږي. هغه د زده کړې تجربې په غوړ نيولو او حفظولو پورې تړلې نه بولي. په دې نقش کې ښوونکی د زده کــړې لارښــود او مرســته کوونکی دی. هغه د مطلبونو د يو اړخيز انتقال پر ځای د زده کړې پر لارو چارو، د تجربې په ترلاسه کولو او د مسئلې پــه حلولو ډېر ټينګارکوي. د ښوونکي د لارښود د کتاب يوه موخه هم د زده کړې لپاره د لارو چارو وړاندې کول دي.

د ښوونکي ددې لارښود د تاليف د نورو موخو او لاملونو په ترڅ کې د زده کړو د موخو څرګندول، د محتوا (متن) د ټاکلو اصول او د لسم ټولګي د پښتو ژبې د لوست کتاب ارزول دي.

اړوند درسي کتاب د پښتو ژبې د زده کړې لپاره چمتو شوی او د زده کوونکو د زده کړې لپاره پکې د ډېرو تجربو رامنځته کول په پام کې نيول شوي دي، له دې امله د ښوونکي د لارښود کتاب چمتو کول اړين بلل شوی دی. بايد ومنو چې تدريس او زده کړه يو ابتکاري او تجربي کار دی او نوښتګر او مبتکر ښوونکي په دې برخه کې نوي، نوي شيان او لارې چارې رامنځته کوي. دا بايد هم له ياده ونه ايستل شي چې د زده کړې د ستراتيژۍ په ټاکلو کې، موخو، د ارزونې له لارو چارو، د زده کوونکو دګډون شونتيا او نورو اصولو ته، چې د اروا پېژندنې، د ترتيبي اروا پوهنې او د زده کړې له اروا پوهنې سره په همغږۍ کې زموږ په وړاندې پراته دي، سمه پاملرنه وشي. له ياده ونه ايستل شي، چې متن د کومو اصولو له مخې وټاکل شي، د محتوا د همغږي کولو اصول کوم دي؟ د تدريس او ارزونې لارې چارې کومې دي او څه اهميت لري؟ دا چې د مهمو مفهومونو رااېستل څنګه سرته رسيږي، د ښوونکي په دې لارښود کې څرګند شوي دي.

**د ښوونکي لارښود**

د ښوونکي لارښود د ښوونکو د زده کړې يوه وسيله ده؛ هغه کتاب دی چې له ښوونکي سره مرسته کوي د يو درسي ساعت او يا د تعليمي دورې په اوږدو کې د خپل تدريس پلان چمتو کړي. د ښوونکي په لارښود کې د هر لوست عمومي او خصوصي موخې، د تدريس وسايل، لارې چارې، د زده کوونکو د انګېزې پارول، د ښوونکي فعاليتونه، د زده کوونکو فعاليتونه، د زده کوونکو د زده کړې د تحکيم برخه او ارزونه او په پای کې د لوست په اړوند اضافي معلومات او اخځليکونه په پام کې نيول شوي دي. د ښوونکي لارښود ددې لپاره ليکل کېږي، چې ښوونکي د درسي پلان له جوړولو او د زده کړې په يو پړاو کې د ښوونې او روزنې له عمومي موخو سره بلد کړي. له ښوونکو سره مرسته وکړي د هر لوست مفاهيم او موضوعات وپېژني، د لوست په اړوند ورته اضافي معلومات چمتو کړي، د هېواد په ټولو ښوونځيو کې د درسي کتاب د يو ډول او همغږي تدريس لپاره لاره هواره کړي او په دې توګه د افغانستان په ټولو ښوونځيو کې د لوست تدريس په پام کې نيول شوې دورې کې سرته ورسوي او درسي کتاب بشپړ کړي. دا خبره اړينه کړي، چې درسي کتاب، هغسې چې د هېواد په پلازمېنې يا د بل لوی ښار په کوم عصري ښوونځي کې تدريسيږي، د هېواد د لرې پرتو ولسواليو او بانډو په ښوونځيو کې هم هماغسې يو ډول او يو راز تدريس شي او لکه چې ويل کېږي د يو متوازن او هر اړخيز معارف لپاره په ټول هېواد کې لاره هواره کړي.

## د افغانستان د پوهنې ښوونيزه او روزنيزه پاليسي

د افغانستان د اسلامي جمهوريت د اساسي قانون په شپاړسمه، درې څلويښتمه، څلور څلويښتمه، پنځه څلويښتمه، شپږڅلويښتمه او اووه څلويښتمه ماده کې د درج شوو احکامو او د افغانستان د پوهنې د قانون د شپږمې، اوومې مادې او نورو احکامو له مخې او د هېواد د معنوي او مادي اړتياوو او واقيعتونو ته په پام او د افغانستان د ښوونې او روزنې د نظام د اساسي ليکو د انځورولو په خاطر د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت د پوهنې ښوونيزه او روزنيزه پاليسې په لاندې ټکو کې رانغاړل کېږي:

۱. د خدای ﷻ پالنې، د اسلامي احکامو او ارزښتونو تطبيق ته د پابندۍ، وطن دوستۍ، د ملي يووالي ټينګښت، ګډ ژوند او بشر دوستۍ په روحيې د هېواد د ماشومانو، تنکيو ځوانانو او ځوانانو لپاره، که ښځينه وي يا نرينه، د ښوونې او روزنې د زمينو چمتوکول،

۲. له خپلواکۍ، ملي واکمنۍ، د ځمکنۍ بشپړتيا، اسلامي ورورولۍ، ملي پيوستون، له سولې سره د مينې او فرهنګي بډاينې څخه د دفاع، د توپير او زور زياتی د ټولو ښو او ډولونو د له منځه وړلو د روحيې پياوړتيا،

۳. د ښوونیزو او روزنیزو موسسو بیا رغاول، جوړول، پراختیا او سمبالول،

۴. په نړۍ کې له علمي مثبتو بدلونونو سره جوخت د هېواد د ښوونیز اوروزنیز سیستم پراختیا،

۵. د نورو هېوادونو له ښوونیزو اوروزنیزو رغندو او بریالیو تجربو څخه ګټه اخیستنه،

٦. د جنس، توکم، ژبې، مذهب، نژاد او ټولنیز دریځ له په پام کې نیولو پرته ټولو ته تر لومړنیو او منځنیو (۱–۹) ټولګیو پورې په جبري او وړیا توګه د لومړنیو زده کړو چمتو کول،

۷. په (دولتي او خصوصي) ښوونځیو کې په هغو ژبو تدریس، چې په اساسي قانون کې تسجیل شوي دي.

۸. د اسلام د سپیڅلي دین له زده کړو، د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اساسي قانون د ارزښتونو او د افغاني ټولنې له دودونو سره سم او د پیداګوژیکي اصولو او عملي تجربو ته په پام او د افغانستان د ښوونې او روزنې د کیفي ښه والي په خاطر د افغانستان د پوهنې سیستم د هلکانو او نجونو د جلاوالي پر بنسټ ولاړ دی. له دې امله ګډه زده کړه د لومړنۍ دورې له دریم ټولګي څخه وروسته د زده کړې په هیڅ یوه موسسه کې، که دولتي وي یا خصوصي، په کورونو، ورزشي کلپونو او نورو ځایونو کې مجاز نه ده.

۹. د دریمو ژبو تدریس (د اساسي قانون ۱٦ ماده) په اړوندو سیمو کې د یو مضمون په توګه،

۱۰. د بیځایه شوو کورنیو، کډوالو او د ځانګړو اړتیاوو لرونکو زده کوونکو ته د ښوونې او روزنې د زمینو چمتو کول،

۱۱. د اسلامي زده کړو د مدرسو، عمومي زده کړو، حرفوي او مسلکي ښوونځیو او د ښوونکو د روزنې موسسو پراخوالی او د هغوی سمبالول،

۱۲. د ښوونکو د علمي او مسلکي سویې لوړول،

۱۳. د ښوونکو د ژوندانه د حالت سمول،

۱۴. د بیسوادۍ د له منځه وړلو، د حیاتي سواد او د کارګري متممو ښوونځیو (نرینه او ښځینه) د پراخوالي لپاره هلې ځلې،

۱۵. د افغانستان د پلي شوو قوانینو په اډانه (چوکاټ) کې د پوهنې د مسلکي تخصصي، اداري ظرفیتونو په رغاولو، سمبالولو او لوړولو کې د هېوادونو، نړیوالو موسسو، غیر دولتي موسسو او اشخاصو له بې غرضه او بشر دوستانه مرستو او ونډې څخه ملاتړ،

۱٦. د متوازن معارف پیاوړتیا او د هېواد په مرکز او ولایتونو کې د ښوونیزو او روزنیزو امکاناتو سم او عادلانه ویش،

۱۷. د تاوتریخوالي، تبعیض، ناروا جګړو، نشه يي توکو، مسکراتو او اخلاقي مفاسدو په څېر د ناوړو پدېدو پر زیانونو د زده کوونکو خبرول،

۱۸. آزادۍ، سولې، سوله ییز ګډ ژوند، شورا او دموکراسۍ، بشري حقونو ته درناوی او د استوګنې د چاپیریال د ساتنې په څېر غوره ارزښتونو ته د زده کوونکو لارښوول،

۱۹. له اسلامي احکامو او ارزښتونو سره سم د نجونو ښوونې او روزنې ته هراړخیزه پاملرنه او د نجونو او هلکانو د ښوونځیو ترمنځ د توازن رعایت،

۲۰. د خاصو زده کړو (ډېرو هوښیارو، ړندو، کڼو او ذهني وروسته پاتې زده کوونکو) ته پام او د ښوونې او روزنې لپاره یې اغیزمنې او ګټورې لارې چارې لټول،

۲۱. د هېواد د پلي شوو قانونونو په اړانه کې د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې د تعلیمي نصاب، په (دولتـــي او خصوصي) ښوونځیو کې له تدریس او درسي موادو څخه د ګټې اخیستنې څارنه او نظارت،

۲۲. د ورزش، سپورت او بدني روزنې د ودې لپاره د زمینې چمتو کول،

۲۳. د علمي برياوو او مسلکي تجربو د راکړې ورکړې په موخه د تعلیمي نصاب د پراختیا، د اسلامي زده کـــړو د معینیت او د ښوونکو د روزنې، د ساینس د مرکز د ریاستونو او په هېواد کې د اړوندو پوهنتونونو او نورو ارګانونوتر مـــنځ د اړیکو ټینګښت او د لا زیاتې همغږۍ رامنځته کول،

۲۴. د افغاني ټولنې له اړتیاوو سره سم د اسلامي زده کړو د مدرسو هراړخیزه وده، پراختیا او رغنده کول.

**د لوی خدای ﷻ په مرسته به د هېواد په پوهنې کې ددغې پالیسۍ په پلي کولو لاندې لویې پایلې ترلاسه شي:**

– په اسلامي روحیې د هېواد د اولاد روزل، د الله جل جلاله د رضا ترلاسه کول او د یوې ســـوکاله او نېکمرغـــې ټولنې رامنځته کول،

– د ملي هویت ساتنه،

– د مسلمانو، هېوادپالو، ګټورو، ژمنو او متمدنو انسانانو په توګه د هېواد د اولاد سالمه روزنه،

– د نړۍ او ټولنې له علمي معیارونو سره سم د بریمن تطبیق په موخه د پوهې، مهارتونو او رغنده تفکـــر تـــر لاســـه کول،

– د کار موندلو لپاره د لازمو وړتیاوو د ترلاسه کولو او د کار مارکیټ ته په بري سره د ننوتـــو پـــه منظـــور د زده کوونکو د پوهې د کچې لوړول،

## په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې (هدفونه)

د هېواد د ښوونې او روزنې نظام د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اساسي قانون د احکامو، د پـــوهنې د قـــانون او پالیسۍ پر بنسټ او د افغاني ټولنې اړتیاوو او واقیعتونو ته په پام د زده کوونکو د سالمې روزنې په خاطر لاندې موخـــو تـــه ځان رسوي:

**الف ـــ عقیدتي او اخلاقي موخې**

۱. د اسلام د سپېڅلي دین پر اساساتو او ارزښتونو د ایمان او عقیدې پیاوړتیا، د قرآني زده کړو او د پیغمبر صـــلی الله علیه وسلم د حدیثو پر بنسټ د اسلامي لید پراخوالی،

۲. د خدای ﷻ د پیژندنې په منظور د ځان پیژندنې د روحیې پیاوړتیا،

۳. پر ځان د ویسا او پر اخلاقي ښېګڼو د پابندۍ د روحیې پیاوړتیا،

۴. د نظم او د دسپلین د منښت د روحیې وده او روزنه او د قانوني احکامو او ارزښتونو منل،

۵. د دیني، ټولنیزو، ښوونیزو او روزنیزو ارزښتونو په وړاندې مسوولیت ته د غاړې ایښودلو د روحیې پیاوړتیا،

**ب ـــ د زده کړې او روزنې موخې**

۱. د زده کړې د مهارتونو لاسته راوړل او پیاوړتیا، لکه: اوریدل، خبرې کول، لوستل، لیکل، په رسمي او بهرنیـــو ژبو کې د شمېر او حسن خط کارول،

۲. د پوهنو، فنونو او معاصرې تکنالوژۍ زده کړه او د اړتیا وړ فردي او ټولنیزو مهارتونو ترلاسه کول،

۳. د زده کړې د وړتیاوو وده او د زده کړې په اوږدو کې ځانې زده کړه او ارزونه،

۴.  په علمي، ادبي، فرهنگي او فني ډګرونو کې د تفکر، استدلال، مطالعې، څېړنې، تشخيص او نوښت د وړتياوو وده او پراختيا،

۵.  د فردي او ټولنيزو ستونزو د پېژندلو او هوارۍ لپاره د وړتياوو ترلاسه کول،

**ج ــ  فرهنګي، ادبي او هنري موخې**

۱.  د فرهنګ، ادب او رغنده هنر په برخو کې د زده کوونکو د فطري وړتياوو وده او پراختيا او د تاريخي، فرهنګي، ادبي ميراثونو او شتمنيو د پېژندلو، ساتلو او د درناوۍ روحيه،

۲.  د افغانستان، اسلامي تمدن او د نورو هېوادونو له تاريخ، ادب او فرهنګ سره پېژندګلوي،

۳.  د فرهنګ، ملي هنرونو، د افغاني ټولنې د غوره او سالمو ادابو او دودونو پراختيا او د هغوی د اصالت ساتنه،

۴.  د تمرين او يوکسيزو او ډله ييزو فعاليتونو له لارې د ادبي او هنري مهارتونو پراختيا،

**د ــ مدني او ټولنيزې موخې**

۱.  د خپلواکۍ وطن دوستۍ او آزادۍ غوښتلو، د اسلامي ارزښتونو او ملي نواميسو د ساتنې د روحيې پياوړتيا او د انسانانو د حقوقو د عدالت او رعايت په بنسټ د کورنيو اړيکو ټينګښت،

۲.  د اسلامي ورورولۍ، مرستې، سولې، ټولنيز عدالت، ملي او نړيوال پيوستون د روحيې پياوړتيا،

۳.  د خير غوښتنې د حس پراختيا، د اخلاقي فضايلو لوړتيا او له زور زياتي او ناروا جګړو سره ضديت، له نشه يي توکو، مسکراتو، اخلاقي او ټولنيزو مفاسدو سره مبارزه،

۴.  قانون ته د درناوۍ او د هغې د منښت د روحيې پياوړتيا او د توکم، جنس، عمر، اقتصادي او ټولنيز دريځ او سياسي تړاو له په پام کې نيولو پرته د هېواد د ټولو اتباعو د قانوني حقوقو ملاتړ،

۵.  په ټولنيزو اړيکو کې د زغم، سربښندنې او ايثار د روحې پراختيا او ټولنيزې ګټې پر فردي ګټو رومبی کول،

٦.  د انتقاد او انتقاد منلو، زغم او د نورو رايو ته د درناوي د روحيې پياوړتيا،

۷.  انساني کرامت ته د درناوي د روحيې پياوړتيا او پراختيا، د اشخاصو د حرمت ساتل، د معاشرت او په ټولنيزو اړيکو کې د ادابو او د بشري حقونو رعايت،

۸.  په سوله ييز او رغنده ډول د توپيرونو او شخړو د هوارولو د روحيې پياوړتيا،

۹.  د زغم او د نورو د منلو د فرهنګ پياوړتيا،

۱۰. د بشري ټولنې له علمي او تخنيکي تجربو او مثبتو برياوو څخه د ګټې اخيستنې د روحيې پياوړتيا،

۱۱. د هر ډول تبعيض د ردولو او له منځه وړلو د روحيې پياوړتيا او پراختيا،

۱۲. د ښځې انساني دريځ ته د درناوي د روحيې پياوړتيا او له ښځو څخه ملاتړ،

۱۳. د مور پلار، مشرانو، ګاونډيانو، هېوادوالو او د نورو انسانانو حقونو ته د درناوي د روحيې پياوړتيا،

۱۴. د استوګنې د چاپيريال او سمسورتيا د ساتنې د روحيې پياوړتيا، پر څارويو زړه سوی او طبيعي ژوندانه او نباتاتو ته پاملرنه،

۱۵. د اوبو د زېرمو د ساتنې د روحيې پياوړتيا، د اوبو په کارولو کې زياتی (افراط) نه کول او د سيندونو، ويالو، کاريزونو او ځاګانو د اوبو له ککړتيا څخه مخنيوی.

**هـ ــ اقتصادي موخې**

۱.  په انساني ژوند کې د اقتصاد پر ارزښت پوهېدل، د ټولنې پراختيا او اقتصادي ودې او له کورنۍ اقتصاد او فردي سلوک سره د اقتصادي فعاليتونو تړاو ته پاملرنه،

۲. د کار پر ارزښت او اهمیت پوهېدل او د بیوزلۍ د له منځه وړلو په خاطر په ګټورو دندو کې د کـــار د روحیـــې پیاوړتیا،

۳. د سپما، قناعت، د روحیې رامنځته کول او ځواکمنول او د اسراف او تجمل مخنیوی،

۴. د هېواد د اقتصادي سرچینو پېژندل او له هغو څخه د استخراج په سمو لارو چارو پوهېـــدل او د ملـــي ګټـــو، شتمنیو او پانګو د ساتلو د روحیې پیاوړتیا،

۵. د تکنالوژۍ له پرمختګ سره یوځای د بېلابېلو حرفو او تولیدي دندو پېژندل، د ملي عایـــداتو د زیـــاتوالي او د بېکارۍ او د بل پر اوږو د بارېدو د مخنیوی په موخه د لاسي او سیمه ییزو صنایعو احیا او دودول،

٦. په معاملو او اقتصادي فعالیتونو کې د اخلاقي اصولو د رعایت د روحیې پیاوړتیا او نامشروعو اقتصادي فعـــالیتونو پر خلاف مبارزه،

۷. د حرفه یي فعالیتونو د زده کړې هڅول،

۸. د عرضې او تقاضا پر اړیکو د زده کوونکو د پوهې د کچې لوړول،

- د انصاف او د کار د اخلاقو دودول او پر کار د ګومارونکو او کارکوونکو ترمنځ د کار قانون ته درناوی.

**و– روغتیایي موخې**

۱. د پاک ساتنې (حفظ الصحې) او د فردي او ټولنیزې روغتیا په اړه د رغنده ژوند په لارو چارو پوهېدل،

۲. د عمومي حفظ الصحې او د چاپیریال د پاک ساتنې د روحیې پراختیا،

۳. له ناروغیو څخه د ساتلو په موخه له روغتیایي پوهې څخه برخمن کېدل او د اساسي مهارتونو پیاوړي کول،

۴. د لارو چارو او شرایطو په رامنځته کولو د بدني او رواني روغتیا تأمینول او د سالمو تفریحګانو لپـــاره د بـــدني روزنې، ورزش او د سمسور چاپیریال چمتو کول،

د مور او ماشوم روغتیا ته پاملرنه او د هغوی ننګه او ملاتړ.

و – ثانوي دوره (له ۱۰ – ۱۲ ټولګې)

– د تېرو ښوونیزو او روزنیزو دورو د بریاوو ځواکمنول او لوړو زده کړو ته چمتووالی،

– د تفکر د ځواک وده او لا پراختیا، په دیني مسایلو او اعتقادي بنسټونو کې ژور فکر او د معلوماتو تر لاسه کـــول او د ژوندانه د نظام په توګه د اسلام د دین له زده کړو سره د زده کوونکو زیات بلدول،

– د نفس پاکوالی او پر خدای جل جلاله او اسلامي لارښوونو باندي د ایمان پر بنسټ د اخلاقي فضیلتونو پیـــاوړي کول،

– په زده کوونکو کې د ښوونې او روزنې د روحیې پیاوړتیا او د مناسبو زمینو چمتو کول،

– د پوهنو، بشري تجربو او پرمختللې تکنالوژۍ په مرسته په طبیعت کې د موجودو قوانینو او د نـــړۍ د اســـرارو د پېژندلو لپاره هلې ځلې،

– د رسمي او مورنۍ ژبې لا ښه زده کړه، د زده کوونکو د ادبي پوهې پراختیا او د بهرنیو ژبو زده کړه،

– د اړتیا وړ پوهنو او فنونو زده کړه او د فردي او ټولنیزو مهارتونو ترلاسه کول،

– له اسلامي ارزښتونو او د ملي فرهنګ له مثبتو غوښتنو سره سم له هنر سره د زده کوونکو بلدول او له هغې څخـــه معقوله ګټه اخیستل،

– د هېواد د ادبي، فرهنګي، هنري او تاریخي میراثونو د ساتنې د روحیې وده،

– د مرستې د روحیې او رغنده سیالیو سره د زده کوونکو د مینې وده او پراختیا،

– د ملي نواميسو د ساتنې د روحيې پياوړتيا او د اسلامي حقوقو او اخلا قو پر بنسټ د كورنيــو اړيكــو د بنســټ ځواكمنول،

– د خير غوښتنې د حس پياوړتيا، د اخلاقي فضيلتونو او د سوله غوښتنې د فضايلو لوړتيا، له تاوتريخوالي او نــاروا جګړو سره ضديت، له نشه يي توكو، الكولي څښاك او اخلاقي مفاسدو سره مبارزه،

– مسووليت ته د غاړې ايښودلو د روحيې پياوړتيا، د كورنيو او ټولنيزو چارو سم ســرته رســول او پــه اســلامي، فرهنګي او ټولنيزو چارو كې ونډه اخيستل،

– په ټولنيزو اړيكو كې د زغم، سرښندنې او ځان تېرېدنې د روحيې پياوړتيا او د ټــولنيزو ګټــو پــر فــردي ګټــو لومړيتوب،

– د سبا ورځې لپاره د زده كوونكو چمتوكول، د كورنۍ د جوړښت له ارزښت او په هغې پورې له اړوندو شــرعي احكامو څخه خبرتيا،

– د اقتصاد ارزښت ته پام او د زده كوونكو معنوي بشپړتيا او سوكالۍ ته د رسېدو د يوې وسيلې په توګــه د هغــې رغنده ونډه،

– د ښوونې او روزنې په بهير كې د ځاني ارزونې د وړتياوو ځواكمنول،

– له ورزش سره د زده كوونكو د مينې پارول او د بدني او رواني روغتيا څارنه،

– د فرهنګي يرغل په وړاندې له زده كوونكو سره مرسته او له بېځايه پيښنو او تقليدونو څخه د هغوی د مخنيــوی او د افغاني او اسلامي ارزښتونو او د هويت د ساتلو له لارې د وخت د مثبتو پرمختګونو او تكنــالوژۍ څخــه د اســتفادې د روحيې پياوړتيا،

– د زده كوونكو د استعدادونو د روزلو په موخه په فرهنګي او ټولنيزو فعاليتونو كې د هغوی د ګــډون د روحيــې پياوړتيا،

– د مطالعې او دكتاب لوستلو د فرهنګ وده.

### د منځپانګې د غوره كولو لارې چارې

د منځپانګې په غوره كولو كې لاندې اصول په پام كې نيول شوي دي:

له اړتياوو او علاقه مندۍ سره همغږي، اعتبار (د منطقي، پرله پسېوالي، له پلټنو او تاييد شوو كتابونو او له لومړنيو او مستندو سرچينو څخه ګټه)، د ټولګي دننه او بهر د زده كوونكو له عمر او ذهني وړتياوو سره سم د لازمو فرصــتونو چمتــو كول.

### د منځپانګې د تنظيم او ترتيب اصول

د منځپانګې په تنظيم او ترتيب كې له لاندې لارو چارو څخه ګټه پورته كېږي:

پرله پسېوالي، همغږي، د زده كوونكو د فردي او ټولنيزو اړتياوو تر منځ سمون، د تدريس د لارو چارو او منځپــانګې تر منځ سمون،

### د لوست د اصلي پيغامونو په نښنه كول (Key Concepts)

لومړی ښايي د «اصلي پيغامونو» معنا او مفهوم وپېژنو. هر لوست پوهنيزه موخه يا موخې لري. دا موخه يا مــوخې د يوه يا څومفهومونو د زده كړې لپاره چمتو شوي دي. دا د لوست هماغه اصلي پيغامونه دي. ددې سريزې له مخې د لوســت له اصلي پيغامونو څخه د ارزونې لپاره هم كار اخيستل كېږي؛ ځكه د زده كوونكو له خوا ددې عمل سرته رســول دا معنــا لري چې هغوی لومړنۍ پوهه ترلاسه كړې ده.

کېدای شي د مختلفو متنونو د زده کړې او مطالعې مهارت او وړتیا (د لوست د اصلي پيغامونو په نښنه کـــول) د زده کړې او ارزونې په پړاو کې د یوه عمده مهارت په توګه وګڼل شي او په زده کوونکو کې د هغې رامنځته کـــول او پيـــاوړي کول یوه موخه بلل کېږي.

**د لوست لنډیز:**

د «لنډیز» فعالیت هم په خپله یو اساسي مهارت دی او هم د ارزونې لپاره کارول کېږي، چې ښایي زده کوونکي يـــې زده کړي.

د «لوست د لنډولو» وړتیا د تفکر یو مهم مهارت دی. د لوست د لنډولو له لارې کېدای شي پراخ معلومات په لنـــډ ډول بیان شي، ترڅو د لوست د متن موخه آسانه په لاس راشي. لنډیز په لنډه وینا د لوست د اصلي مفهومونو بیان دی. لنډیز په یوه وینا کې د ټولو جزیاتو نغښتل دي. د لنډیز توپیر د لوست د اصلي پيغامونو له راایســـتلو ســـره دادی چـــې د اصـــلي مفهومونو د یادولو پر ځای زیار ایستل کېږي مفهومونه یو ځل بیلا بېل سره یوځای شي او بیا بېرته نوی متن لاسته راشي.

**د لنډیز لپاره ځینې لارښوونې**

۱– که غواړئ یو مطلب لنډ کړئ، زیار وباسئ له لیکلو او یاداشتولو پرته پرې پوه شئ.

۲ – تر مهمو کلمو او مفهومونو لاندې کرښه وکاږئ. په دې کار هغه معلومات مخې ته نه راځي چې ګټه يـــې لـــږه وي.

۳ – لنډیز په خپلو عبارتونو ولیکئ. د اصلي متن د جوړښت په څېر يې مه لیکئ. په دې کار ډاډ تر لاسه کوئ چـــې خپلې شخصي عقیدې مو په لنډیز کې نه دي راوستي. د لنډیز هره کلمه او عبارت باید پر متن ولاړ وي. لنډیز بایـــد د ټـــول متن ۱۵ – ۲۰ سلنه وي.

۴ – له لنډیز څخه وروسته د خپل ډاډ لپاره هغه له اصلي متن سره پرتله کړئ.

**ارزول (Evaluation)**

ارزونه د زده کړې موخو ته د زده کوونکي د پرمختګ د معلومولو او ټاکلو لپاره له منظم بهیر څخـــه عبـــارت دی. منظم بهیر په دې معنا چې ارزونه ښایي د پلان له مخې منظمه سرته ورسیږي. په دې ترڅ کې د «زده کړې د موخې» ددې لپاره دي چې په ارزونه کې باید د زده کړې موخې له وړاندې ټاکل شوې وي. په دې توګه د زده کړې ارزونه د تدریس لـــه څرنګوالي سره د مرستې، د ښوونکو په اړه د لوړپوړو چارواکو د پرېکړې، د زده کوونکو سره د مرستې او د تـــدریس پـــه برخه کې د پلټنې په اړه د لارو چارو د معلومولو په منظور سرته رسیږي.

په ارزونې کې اساسي لارې چارې په دې بنه وي چې د زده کړې د دورو موخو ته متوجـــه وي او پـــایلې يـــې زده کوونکو او ښوونکو ته د لارښونې او له هغوی سره د مرستې لپاره وکارول شي. همدا راز ارزونه ښایي موخـــو، د تـــدریس لارو چارو او د درسي مضمون بېلابېلو توکو ته په پام سرته ورسیږي.

ارزونه د زده کړې د بهیر د سمون لپاره سرته رسیږي. د زده کوونکو په اړه قضاوت باید د هغوی د کړنـــو، چـــال چلن او شخصیت په اړه د هر اړخیزو معلوماتو پر بنسټ ترسره شي، نه دا چې د ازموینو د نومرو له مخې. له بـــل پلـــوه زده کوونکی ښایي په ارزونه کې ورګډ شي، ترڅو خپل ځان په خپله وارزولای شي. په لنډ ډول باید د ارزونې لپاره غوښـــتونکي شرایط په پام کې ونیول شي.

**په زده کړه کې د ارزونې اهمیت او اړتیا**

د زده کړې ارزونه دوې ګټې لري:

۱ – زده کوونکي پوهيږي چې په زده کړه کې يې څومره پرمختګ کړی او څومره برياليتوب يې ترلاسه کړی،
۲ – ښوونکی پوهيږي چې د مضمون تدريس يې څومره بريالی و.

له خپل برياليتوب څخه د زده کوونکو خبرتيا ددې لامل کېږي چې زده کوونکي په سم ډول او ټاکلې لاره د خپل پرمختګ په اړه قضاوت وکړای شي او د زده کړې او برياليتوب لپاره د زيات مسؤليت احساس وکړي. زده کوونکي خپل کمزوري ټکي وپېژني او ويې مني او د هغې د له منځه وړلو لپاره زيار وباسي. که چېرته ارزونه په ښه نيت او سم ډول سرته ورسيږي، پر ځان د زده کوونکو ويسا پياوړې کېږي.

د مضمون د تدريس له برياليتوب څخه د ښوونکي خبرتيا ددې لامل کېږي چې ښوونکی د لاسته راغلو معلوماتو له مخې د درسي مضمون په کمزورو او قوي ټکو وپوهيږي او د تدريس لاره چاره د هغې له مخې سمه کړي او د تدريس فن د زده کړې په بېلابېلو لارو چارو او د تدريس د نوو مهارتونو د زده کړې له لارې بډای کړي.

**د ارزونې بڼې:**

ارزونه د وخت او موخو له مخې په دربو ډلو ويشل کېدای شي:

تشخيصي، پرله پسې او وروستنۍ ارزونه.

الف: تشخيصي ارزونه د زده کړې په هر نوي پړاو کې د زده کوونکو د مخکنيو زده کړو او مهارتونو د معلومولو په موخه سرته رسيږي.

ب: پرله پسې ارزونه له منظمې او پرله پسې ارزونې څخه عبارت ده چې د ښوونيز کال په اوږدو کې په هر څپرکي يا لوست کې د زده کوونکو ترلاسه شوې زده کړه او پوهه ازمويل کېږي.

ج: وروستنۍ ارزونه د يوه ښوونيز کال په پای کې په هر ټولګي کې د زده کوونکو د مفهومونو او مهارتونو د زده کړې د معلومولو لپاره تر سره کېږي.

اړتياوې:

د زده کړې د ګټورو پايلو د تر لاسه کولو او د پښتو ژبې د لوست د عمومي او خصوصي موخو د رښتينولۍ لپاره بايد د تدريس پر مهال لاندې ټکو ته پام واړول شي:

- د زده کوونکو په ذهن کې د کتاب د بېلابېلو برخو د انسجام او پيوستون او د لوستونو د سمبالښت او عمومي مفهوم د ځرګندولو د ميتود لارې،

- د پښتو ژبې د زده کړې د لازمو او بسنتيزو توکو په ډلې کې د ژبې د مهارتونو (اورېدلو، خبرې کولو، لوستلو، ليکلو) پياوړتيا،

- تر پام لاندې موخو ته د رسېدا په خاطر د تدريس لپاره د لارو چارو او مناسبو علمي بېلګو کارول،

- د زده کړې د پروګرام (فعال تدريس) د اړخونو او د زده کړې د محتوا د عملي کېدا لپاره د تمرينونو او فعاليتونو پر کارندې برخې ټينګار،

- د لوستونو د محتوا ارزولو ته پام او د محتوا (د لوست طرح) د چمتو کولو له لارې د هر لوست د هدف او د مناسب تدريس د لارې ټاکل.

## د تدريس لارې چارې (ستراتيژي) او نمونې

تدريس د پلان جوړولو يو ډول دی. له دې امله د پلان او طرحې د اصولو او بنسټونو تابع دی. زده کوونکو ته د کتاب د محتوا (لوست) د سم تدريس لپاره يوازې يو ميتود موجود نه دی. که چېرته درسي پروګرام په منطقي او اصولي

ډول جوړ شوی وي، نو د تدریس مناسبو لارو چارو ته هم اړتیا پیدا کېږي. له دې امله له ګرانو ښوونکو څخه هیله کېږي د هر لوست محتوا داسې وړاندې کړي چې :

۱– په زده کوونکو کې ژبنۍ وړتیاوې (مهارتونه) (اورېدل، خبرې کول، لوستل، لیکل) پر ځان ویسـا، نوښـت، د څېړنې او څېرتیا او د رواني – حرکتي مهارتونو خپلواکه روحیه پیاوړې شي.

۲– په زده کوونکو کې د نوښتګر او څېړنیز ذهن د راپیدا کېدو تر څنګ د هنري اثرونو د درک او تخلیق وسـه او توان پیدا شي. د ښوونې روزنې او زده کړې څېړنو ښودلې ده چې په یو لوست کې د یوه ځانګړې میتود کارول اغېزمن نـه دي. ښه به دا وي چې د پروګرام د جوړښت او د ژوند او د زده کوونکو د اړتیاوو په پام کې نیولو سره موجود میتودونـه په ګډه او تلفیقي توګه وکارول شي.

۳– ګډ او تلفیقي میتودونه دې داسې چمتو شي چې زده کوونکي د ټولګي په بحثونو او فعـالیتونو کـې د ځـان ازمایلو په څوابونو کې ښکېل او شریک کړي. دا باید په یاد ولرو چې د ښوونکي او د درسي پروګرام اصـلي دنـده زده کوونکو ته د بشپړې او هراړخیزې ودې د زمینو چمتو کول او همدارنګه د زده کوونکو د فردي وړتیـاوو او اسـتعدادونو پالل او هغوی ته وده ورکول دي چې په یوې آزادې ټولنې کې ارزښت او اهمیت لري. د زده کوونکو د **دننیو ځواکونـو خپلواکول او بشپړول** د ښوونې او روزنې اصلي موخه او **د ځان ډېره ښه او سمه پېژندنه** د هغې ډېر ستر ارمان ګڼل کېږي.

اوس له ګرانو ښوونکو سره د مرستې لپاره د تدریس په یو څو نمونو رڼا اچوو. هیله ده چې د ګټې وړ به وي.

۱ – د ګډ کار د تدریس میتود:

دې نمونې ته جان دیوي ګوته نیولې ده. وروسته نورو پوهانو هغه بشپړه کړه. ګډ تدریس د زده کـړې لپـاره د زده کوونکو ډله ییز کار ته ویل کېږي. ګډ تدریس د زده کړې یوه منظمه نمونه ده چې د یوې ډلې غړي په کې د پرلـه پسـې اړیکو د ټینګولو له لارې لوست زده کوي. په دې نمونې کې زده کوونکي د زده کړې په کار کې فعال ګډون کوي او لـه زده کړې سره یې مینه او علاقه پیاوړې کېږي.

پر ۵ – ٦ کسیزو ډلو باندې د زده کوونکو وېش او د هغو پوښتنو د ځوابونو په وړاندې د هغـوی همنظـري ددې میتود ظاهري ښه ده چې ښوونکی یې هغوی ته سپاري.

په دې میتود کې ښوونکی لوست نه توضیح کوي، بلکې مخکې له مخکې جوړې شوې پوښـتنې پـر زده کوونکـو ویشي. په دې میتود کې د ښوونکي اصلي کار د مناسبو پوښتنو جوړول دي.

له بحث او خبرو اترو دمخه د ډلې هر غړی د نوي لوست په اړه خپل معلومات ارزوي. له هغې وروسته د لوست متن لوستل کېږي. وروسته هر زده کوونکی هغو پوښتنو ته ځوابونه وایي چې ورسره دي. د ډلو غړي تر هغې په خپل منځ کـې د پوښتنو په اړه بحث او خبرې اترې کوي چې توافق ته نه وي رسیدلي.

ښوونکي کولای شي له سمعي او بصري توکو څخه کار واخلي او د سم ځواب د پیدا کولو لپاره زده کوونکـو تـه لارښوونه وکړي. په پای کې د زده کوونکو د ډلو پوهه او پوښتنې ازمایل کېږي چې د زده کړې کچه وارزول شي. نشـې کېدای په دې میتود کې د یوه غلي او آرام ټولګي توقع ولرو. ټوکې ټکالې او خندا د ټولګي فضا خوندوروي.

۲– مخکې له مخکې سازمانوونکي میتود:

د مخکې له مخکې سازمانوونکي میتود بنسټ د (آزویل) نظریه جوړوي.

په دې میتود کې د پېژندنې جوړښت او هغه بدلونونه چې د زده کړې په بهیر کې رامنځته کېږي، دزده کـــړې اصـــلي بنسټ گڼل کېږي. د پېژندنې له جوړښت څخه منظور د سازمان شوو اطلاعاتو، مفاهیمو او بهیرونو مجموعه ده چـــې زده کوونکو مخکې د پښتو ژبې په لوستونو کې تر لاسه کړي دي.

دا میتود له زده شوو لوستونو سره د نوو لوستونو پر اړیکو ټینگار کوي. په دې معنا چې که نوي او تازه مطلبونه لـــه مخکنیو مطلبونو سره تړاو ونه لري، زده کړه به بې معنا وي او د زده کوونکو په ذهن کې به ځای ونه نیسي. مخکـــې لـــه مخکې سازمانوونکی میتود د زده کوونکو د پېژندنې د جوړښت د پیاوړتیا او ټینگښت لپاره تدوین شوی دی. له دې مخکـــې چې نوې موضوع وړاندې شي، باید د مخکنیو موضوعگانو پر ټینگښت او پایښت یو څه زیاتوالی راشي. هره علمي برخـــه د یو لړ مفهومونو جوړښت لري. دا مفهومونه د مرتبو لړیو په بڼه جوړېږي. په دې ډول چې ددې جوړښت په لوړه څوکه کـــې عمومي مفاهیم او په ټیټه برخه کې یې جزئي مفاهیم راځي. .

۳– د مفهوم د تر لاسه کولو میتود:

د مفهوم د تر لاسه کولو نظر (برونر) رامنځته کړ (۱۹۵۶). وروسته د ښوونې او روزنې نورو پوهانو هغه بشپړ کـــړ. (بروس جویس) او ملگري یې د وروستنو پوهانو په ډلې کې وو چې دا نظریه یې وړاندې کړه (۱۹۹۲).

د ژب پېژندنې د گرامر د تدریس لپاره له دې میتود څخه کار اخیستل کېدای شي.

۱_ د مفهوم د تر لاسه کولو د زده کړې لارې چارې:

ټولگې ته له ننوتلو دمخه زده کوونکو ته د تمرین او ښوولو لپاره نمونې، بېلگې او پوښتنې چمتو کړو.

۲_ زده کوونکو ته په مفهومونو باندې د بحث کولو زمینه چمتو کړو چې د نوو موضوعگانو د درک لپاره تیار شي.

۳– (د مخکې له مخې سازمان شوي میتود) ته په پام کیدای شي داسې نمونې زده کوونکو ته وړاندې شـــي چـــې د پېژندلو په جوړښت او د ذهن په پیاوړتیا کې اغېزمن او موضوعگانو ته په بنې ورکولو کې هدفمندې وي.

۴– له زده کوونکو څخه وغواړو چې د نمونې په لیدو یې ذهن ته څه شی راغلی او تر هر څه د نمونې کومې برخـــې ته یې زیات پام کړی او ولې یې دا پام کړی دی.

۵– له زده کوونکو څخه دې غوښتنه وشي چې خپلې فرضیې او اټکلونه په څو کسیزو ډلو کې ولیکي.

۴– د استقرایي تفکر میتود:

دا میتود د (هیلداتابا) په نوم یو پوه ازمایلی دی. ددې میتود له مخې ښوونکی د هدفمنـــدو پوښـــتنو لـــه لارې زده کوونکي د لوست لوري ته بیایي. په دې کا ر د زده کوونکو ذهن له جزیي څخه کلي (استقرا) لوري ته ځي او د لوست پـــه پای کې په تر پام لاندې مفهومونو باندې پوهیږي او ډاډ ترې تر لاسه کوي.

د استقرایي تفکر میتود د مفهوم د پیدا کولو له میتود سره ورته والی لري.

۵– د واحد (فردي – ډله ییز) کار میتود:

په دې میتود کې زده کوونکی له اورېدونکي سر ببره د ښوونکي له لارښوونې او د ډلې په مرسته کولای شي خپلې زده کړې پیاوړې او په بشپړ ډول یې مهارتي اوکارنده کړي. په نوموړي میتود کې زده کوونکی په بشـــپړ ډول فعـــل او د ټولگي د وخت له زیاتې برخې څخه گټه اخلي. د دېوالي جرېدې، د هغې په مضمونونو غور کول او سمول، پرتله او داســـې نور مهارتونه د کار د واحد میتود له لارې د تدریس وړ دي.

ښوونکی د یوه لوست په هکله له لازمو څرگندونو وروسته کولای شي هرې کاري ډلې ته د بشـــپړولو لپـــاره یـــوه موضوع وسپاري. د کار په پای کې ډلې د خپل کار پایلې د خپل استازي له لارې ټولگي ته وړاندې کوي. په دې میتود کـــې

کېدای شي آن د تدریس بهیر هم د کار ډلو ته وسپارل شي. د بېلګې په توګه، په لیک باندې د وینا تبدیلولو لپاره ټولګی په پنځو ډلو وېشل کېږي او هرې ډلې ته یوه وینا ورکول کېږي چې په لیک یې واړوي. په پای کې هره ډله هغه ټوپیرونه چې پام یې ورته اوښتی، تر خبرو اترو لاندې نیسي. په پای کې دا ټوپیرونه جمع بندي کېږي. کېدای شي دا کار له ټولګي بهر هم دوام وکړي. کورنۍ دنده هم د کاري ډلو په بڼې وسپارل شي.

٦- د پرتلې میتود

دا میتود په لیکوالۍ کې ډېر اغېزمن او فعال رول لري. د بېلګې په توګه، غـواړو ((علمـي لیکـوالي)) او ((ادبـي لیکوالي)) تدریس کړو. لومړی یوه علمي او ادبي لیکنه یوځای زده کوونکو ته ورکوو:

– علمي لیکنه:

((معمولاً قید په یوې جملې کې د مبتدا یا صفت اندازه څرګندوي. کله یوه قید د یو فعل په اړه څرګندونې کـوي او یا ټوله جمله مقیدوي. کېدای شي دا څرګندونه پراخه وي... .))

- ادبي لیکنه:

((د هغوی کوډله د رود پر غاړه په نمناکو خاورو او وښو کې پټه وه. داسې برېښېده چې تا به ویل، منګولې یـې پـه ځمکې کې منډلې او ترهغې لاندې یې په خپل زور ځان په ځمکه کې ټینګ کړی دی. باران یې سر او مخ پرېولی و.))

وروسته د هر متن په ځانګړتیاوو خبرې کوو او سره پرتله کوو یې.

- په لومړۍ لیکنه کې هره کلمه څرګنده او دقیقه معنا لري، خو په دویمه لیکنه کې کلمې څو، څو معنا ګانې لري.

- په لومړۍ لیکنه کې ادبي ښکلا، لکه تشبیه، استعاره، مجاز او نور نه تر سترګو کېږي، خو په دویمه لیکنـه کـې (کوډلې ... منګولې په ځمکې کې منډلې دي.) کارول شوې ده.

- په لومړۍ لیکنه کې پیغام په لږو او لنډو کلمو څرګند شوی دی، خو په دویمه لیکنه کې د یوه پیغام څو اړخونو تـه پام اړول شوی دی.

- او نور

د تدریس لپاره د پرتلې د میتود کارول او زده کوونکو ته د هغې لېږدول د یوې موضوع د تشـریح او څرګنـدولو لپاره مناسب او د کارولو وړ دي. د پرتلې د میتود په واسطه د څو مسئلو یا موضوعګانو ترمنځ توپیرونه او ورته والـي پـه ډېره آسانۍ بیانولای او څرګندولای شو.

٧- د ډله ییزو خبرو اترو میتود:

په دې میتود کې د داسې منظم او سنجول شوي بحث چې د یوه ټولګي د ټولو زده کوونکـو پـه خوښـه وي، د لیکوالۍ د یوه وړتیا په هکله مطرح کوو. په نوموړي میتود کې زده کوونکو ته فرصت ورکول کېږي چې د یوې موضوع یا مسئلې په اړه د خپلو نظریو او تجربو په هکله خبرې اترې وکړي. د بېلګې په توګه، د یوې سفرنامې په اړه زده کوونکو تـه معلومات ورکوو. لومړی په دې هکله یو لړ پوښتنې کوو. په لاندې ډول:

- سفرنامه څه شی دی؟
- څه ګټه لري؟
- څو ډوله سفرنامې شته؟
- له کوم مهال راهیسې د سفرنامو په لیکلو پیل شوی دی؟
- په یوې سفرنامې کې څه ډول معلومات راټولیږي؟
- سفرنامه زموږ په ټولنیزو، تاریخي، ژبنیو او ادبي څېړنو کې څه مرسته کولای شي؟

- کومه یوه مشهوره سفرنامه پېژنئ؟
- یوه سفرنامه څنګه لیکلای شو؟
- د یوې سفرنامې د لیکلو لپاره باید کوم اصلونه په پام کې ونیول شي؟
- او نور

ښوونکی کولای شي زده کوونکو ته د لوست موضوع له وړاندې ووایي چې هغوی یو څه معلومات راټول کړي. ښوونکی باید د خبرو اترو څارنه وکړي او د ټولګي د وخت د ضایع کېدلو مخه ونیسي. همدارنګه هڅه دې وکړي چې خبرې اترې ساده او د پوهېدلو وړ وي.

په دې میتود کې د لوست له وړتیا پرته نورې وړتیاوې هم پیاوړې او غښتلې کېږي، لکه: د خلکو په وړاندې د نظر څرګندول، له خلکو سره د نظر همغږي کول، د نورو د نیوکو او انتقادونو په وړاندې زغم او د لارښوونې وړتیا، د مسئلو پېژندل او د هغوی هوارولو ته د لارو چارو لټول، غوږ نیول او خبرې کول.

۸– د پوښتنو او ځوابونو میتود:

کېدای شي د یوه مهارت د تدریس بهیر د پوښتنو او ځوابونو له لارې تر سره شي. دا میتود اوږده مخینه لري. له میلاد څخه دمخه په پنځمې پېړۍ کې سقراط دا میتود کارولی دی.

ښوونکی کولای شي د لوست اساسي مفهومونه او معلومات د ټولګي پر دړې ولیکي او د زده کوونکو په مرسته ورته ځوابونه پیدا کړي.

پوښتنې باید ساده او د لوست اصلي مفهومونه پکې نغښتل شوي وي؛ منطقي پېوستون (پرله پسې والی) پکې وي؛ د ټولګي خبرو اترو او د زده کوونکو ذهن ته لوری ورکړای شي؛ د زده کوونکو په ورکړ شوو ځوابونو کې توافق رامنځته شي؛ ټول زده کوونکي په کې په فعال ډول برخه واخلي او پوښتنې له ساده وو پیل او په سختو پای ته ورسیږي.

د بېلګې په توګه، غواړو په یوې لیکنې کې تشبیه وپېژنو. لومړی یو متن پر دړه لیکو چې تشبیه په کې کارول شوي وي. لکه، ((ناڅاپه په خبرو راغی. خبرې یې د یوې ماشینداري د ګولیو په څېر له خولې راووتې، لکه د تسپو تار چې وشلېږي.))

بیا یو څو پوښتنې کوو:
- خبرې له څه شي سره تشبیه شوي دي؟
- د خبرو او د ماشیندارې د ګولیو تر منځ څه اړیکې لیدل کېږي؟
- لیکوال ولې دا اړیکې په ګوته کړي دي؟
- ستاسو په اند خبرې له بل کوم شي سره پرتله کېدای شي؟

په پورته توګه د پوښتنو د ځوابونو له لارې تشبیه په ښه ډول تدریسولای شو.

۹ – د تمرین ورکولو میتود:

ښوونکی له هغه وروسته چې د لیکوالۍ یو مهارت یې تدریس کړ، زده کوونکي د یوه یا څو تمرینونو له لارې د نوموړي مهارت کارونې ته هڅوي. د بېلګې په توګه د لیک نښو له تدریس وروسته ښوونکی زده کوونکو ته یو متن ورکوي چې لیک نښې په کې نه وي کارول شوي او غوښتنه ترې کوي چې هغې ته لازمې لیک نښې کښیږدي. یا داسې یومتن چې پراګرافونه یې بیل شوي نه وي او له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې پراګرافونه د منطقي تسلسل له مخې جلا کړي.

ښوونکي کولای شي له دې میتود څخه په پرله پسې توګه کار واخلي.

۱۰ – د (فردي – ډله ییزې) څېړنې میتود:

دا میتود زده کوونکو ته ورتیا ورکوي چې د فردي یا ډله ییزې څېړنې له لارې خپلې ســتونزې هــوارې کــړي. د نوموړي میتود له لارې باید هر یو زده کوونکی د څېړنې اصول او بنسټونه زده کړي. په دې میتود کې باید ښوونکی مخکــې له مخکې زده کوونکو ته د څېړنې لارې چارې زده کړي او په خپله هم ورباندې لاسبری وي. هغه فعالیتونه چې دا میتود پــه کې کارول کېږي، لاندې دي:

- د یوې موضوع د څېړلو لپاره له کتابتون څخه ګټه اخیستل،
- د یوې موضوع په اړه د مرکې یا پوښتنلیک له لارې څېړنه،
- کتابتون ته مراجعه او د یوې موضوع په اړه د ګڼو سرلیکونو ځانګړي کول،
- د یوې تاریخي ودانۍ په اړه د یوې پنځه کسیزې کاري او څېړنیزې ډلې جوړول،

۱۱ – د مسئلې د حل میتود:

په دې میتود کې منطقي تفکر پیاوړی کېږي. کېدای شي له دې لارې زده کوونکي ته ورزده کړای شي چې د پدیدو تر منځ تازه اړیکې ومومي. دا میتود زده کوونکي ته ورزده کوي چې په یوازې ځان او د منطقي تفکر لــه لارې د همــدې موضوع په هکله یوڅه ولیکي.

د بېلګې په توګه، غواړو ((د لیکلو ساده ترا میتود)) د مسئلې د حلولو د میتود د نمونې له لارې زده کوونکو ته ورزده کړو. ددې کار لپاره د لاندې پنځه ګونو پړاوونو د وهلو له لارې زده کوونکو ته وښیو چې لیکوالي یو آسان او شونی کار دی:

- د مسئلې ټاکل،
- د مسئلې د لاملونو په اړه ګومان یا د هغې ځانګړي کول،
- د حل د شونو او ممکنو لارو په پام کې نیول،
- د حل تر ټولو ښې لارې غوره کول،
- د حل د ټاکلې لارې سرته رسول.

د بېلګې په توګه:

۱ – احمدنه پوهېد چې د فرهنګ په اړه لیکنه څنګه او له کومه ځایه پیل کړي؛ کومه موضوع پــه کــې راولــي او څنګه یې سرته ورسوي.

۲ – هغه لومړی هڅه وکړه د خپلې ښوونې لاملونه له پامه تېرکړي. احمد کولای شي د فرهنګ په اړه خبرې وکړي، خو د خپلو خبرو د لیکلو وسه ورسره نشته.

۳ – احمد د ښوونکي او د خپلو مخکنیو زده کړو په مرسته د حل څو لارې په پام کې ونیولې:

الف– لومړی یې یو څو پوښتنې جوړې کړي او بیا یې هرې یوې ته لنډ، لنډ ځوابونه ولیکل او وروسته یې منظم کړل.

ب – د فرهنګ په اړه بنسټیزې کلمې او مفهومونه یې راټول او هغوی ته یې پراختیا ورکړه. د هر مفهوم په اړه یې یو څو کرښې ولیکلې او وروسته یې منظمې کړې.

ج – د فرهنګ په اړه یې له ځان سره یو څو دقیقې خبرې وکړې او هغه یې ثبتې کړې. وروسته یې هغه خبرې له ټیپ ریکارډر څخه د کاغذ په مخ ولیکلې.

د – د تحقیق او مطالعې له لارې یې د فرهنګ په اړه یاداشتونه چمتو کړل. وروسته یې دا یاداشتونه تنظیم او د کــار لنډېز یې د یوې مقالې په توګه ولیکه او ټولګي ته یې وړاندې کړل.

۴ – احمد د موضوع د ماهیت له مخې د ((الف)) او ((د)) له لارو څخه ګټه واخیسته.

۵ – هغه ددې کار لپاره لومړی څو پوښتنې جوړې کړي.

- فرهنګ څه شی دی؟
- د فرهنګ جوړوونکي عناصر کوم دي؟
- له سواد سره د فرهنګ اړیکې څه شی دي؟
- د فرهنګ د ساتلو لپاره باید څه وکړو؟
- د یو هېواد د فرهنګ د غوړېدا لارې کومې دي؟

له هغې وروسته یې د هرې پوښتنې لپاره د د تحقیق له میتود او له منابعو څخه په ګټې اخیستنې لنډ ځوابونه چمتو کړل. خپله لیکنه یې یوه پلا خپل یو ملګري ته ولوستله. په پای کې یې هغه ایډیټ او له سره یې پاکه ولیکله.

**۱۲ — د تدریس عمومي نمونه**

په اصل کې د تدریس عمومي نمونه د لوست د طرحې ډول دی او په عمومي مفهوم یو ټاکلی چوکاټ دی چې د تدریس مهم توکي په کې پیشبیني کېدای شي.

د تدریس میتودونه د زده کوونکي د فعالیت یا نه فعالیت پر بنسټ په فعالو او غیر فعالو دوو ډلو ویشل کېږي. د فعال میتود په تدریس کې زده کوونکي په خپله د زده کړې په بهیر کې ګډون کوي او د هغې محور (شاګرد محوره) دی. په غیرفعال میتود کې یا ښوونکی په پرله پسې خبرې کوي او کار کوي او زده کوونکی چوپ او بېحرکته پاتې کېږي (معلم محوره) او یا دا چې ښوونکی او زده کوونکي هر یو خپل، خپل کار کوي او یو د بل په کار کې لاس نه وهي.

څرګنده ده چې د زده کړې پرمختګ د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکي د برخې اخیستنې او فعالیت پورې تړلی دی. د تدریس عمومي نمونه د زده کړې د بهیر د هر ډول سریزه ګڼل کېږي.

دا نمونه د لومړي ځل لپاره په ۱۹۶۱ کال کې (رابرت ګلیزر) معرفي کړې او پنځه پړاوونه لري:

۱_ زده کړې د موخو ټاکل: د زده کړې د موخو (عمومي – جزیي) په ټاکلو کې یې پوهې، وړتیا او ذهنیت ته پام واړول شي.

— د مخکنیو زده کړو معلومول او د لوست د پیل ارزونه: ښوونکی د زده کړې لپاره د زده کوونکي له چمتووالي څخه د ډاډمن کېدو په موخه د هغوی مخکنۍ پوهه پیشبیني کوي او د څرګندو کړنو له لارې یې بیانوي. ښوونکی د زده کوونکو د مخکینۍ پوهې د معلومولو لپاره پوښتنې جوړوي چې له تدریس دمخه یې له زده کوونکو څخه کوي. له دې ارزونې څخه لاس ته راغلي معلومات ښوونکی په دې پوهوي چې آیا زده کوونکي د نوي لوست زده کړې ته چمتووالی لري او که نه. آیا دې ته اړتیا شته چې د لوست له پیل څخه دمخه د تمرین په توګه یو څو پوښتنې وشي او که نه.

۳ — د زده کړې د وسایلو او میتود ټاکل: په دې پړاو کې باید د هر لوست د تدریس لپاره د هغې د وړ او مناسب میتود (توضیحي وینا، د رول لوبول، پلټنه او څېړنه، د رپوټ چمتو کول، مرکه، پوښتنې او ځوابونه او ...) څخه ګټه واخیستل شي. همدارنګه د زده کړې له وسایلو او درسي مرستندویه موادو څخه استفاده وشي.

۴ — د شرایطو او د زده کړې د فعالیتونو سمبالښت: ښوونکی باید د تدریس په هکله لازم معلومات او امکانات پیشبیني او چمتو کړي. وروسته ټول شیان یو د بل تر څنګ داسې کښېږدي چې مولد، معنا لرونکي او منسجم وي.

## د پښتو ژبې د زده کړې د لوست کتابونه

د پښتو ژبې په نوو درسي کتابونو کې هر لوست له سرلیک او انځور پرته له درېو برخو څخه جوړ شوی دی:

– د لوست سریزه یا ورودي برخه،

– د لوست متن یا اصلي برخه،

- د لوست د پیاوړتیا او تحکیم برخه

لومړی، د لوست سریزه:

د لوست سریزه په عمومي توګه لوست ته د ننوتلو لاره پرانیزي. د لوست ارزښت په ګوته کوي او کله ناکله له تېر لوست سره د نوي لوست اړیکي ټینګوي او یو منطقي ارتباط تامینوي. کیدای شي دا برخه په یوه، دوو پوښتنو پیل شي او یا په پای کې یوه نیمه پوښتنه راشي. زده کوونکي نوموړو پوښتنو ته وار له واره ځوابونه نه وايي، بلکې هغه له ځان سره ساتي. دا پوښتنې زده کوونکو ته د لوست په اړه انګیزه ورکوي، د زده کوونکو فکر هڅوي، لوست ته زده کوونکي متوجه کوي او په دې توګه هغوی ځير کېږي چې پوښتنه د لوست په کومه برخه کې ځوابیږي.

دویم، د متن برخه:

دا د لوست اصلي برخه ده. په دې برخه کې د لوست پیغام نغښتل شوی. د زده کوونکو پوهه پراخيږي، د نوو کلمو زېرمه يې زياتوي، نوې مفکوره تر لاسه کوي او په دې توګه د نوو لیکنو او متنونو د لیکلو وړتیا مومي او ژبني مهارتونه يې پیاوړي کېږي. د لوست همدا برخه ده چې د زده کوونکو پوهه، وړتیا (مهارت) او ذهنیت پیاوړی کوي او په سلوک يې مثبت بدلون راولي.

دریم، د لوست د پیاوړتیا او تحکیم برخه:

په دې برخه کې د متن لنډیز، فعالیتونه او کورنۍ دنده راځي. د متن په لنډیز کې عموما د لوست مهمې برخې تکرارېږي او زده کوونکو ته د لوست ارزښت په ګوته کوي. فعالیتونه د ښوونکو په لارښوونه پخپله د زده کوونکو له خوا ځوابیږي او ښوونکی له دې لارې د زده کوونکو د پوهې، وړتیا او ذهنیت د کچې په لوړلو کې مرسته کوي او په پای کې لوست ارزوي.

ښاغلی ښوونکی دې هڅه وکړي، د لوست پیل، که ممکن و، له تېر لوست، د تېر ټولګي له لوست یا بلې کومې اړوندې موضوع سره وتړي. په بېلابېلو پوښتنو او لارو چارو زده کوونکو ته د نوي لوست په اړه ذهنیت ورکړي. بیا د متن په لوستلو پیل وکړي. په ورو او څرګنده ژبه متن ولولي او د متن نوو کلمو ته د زده کوونکو پام واړوي. د لوست لنډیز په خپله ژبه زده کوونکو ته ووايي او د لوست پر څرګند پیغام زده کوونکي وپوهوي. د فعالیتونو په سرته رسولو کې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي او ټول زده کوونکي دې د لوست په فعالیتونو کې شریک کړي. هیڅ زده کوونکی دې له دې بهیر څخه نه بې برخې کېږي. د لوست په پای کې دې زده کوونکي وارزوي او ډاډ دې تر لاسه کړي چې د لوست پیغام زده کوونکو اخیستی وي او په پوهه، وړتیا او فکر کې يې مثبت بدلون راغلی وي.

پاتې دې نه وي چې هر لوست د یوې اوونۍ لپاره چمتو شوی دی. ښاغلي ښوونکي کولای شي، هر لوست د اوونۍ په ساعتونو وویشي او د ښه تدریس لپاره هره برخه پر زده کوونکو ښه تکرار کړي. د زیات تکرار او د هر زده کوونکي د فعالې ونډې اخیستلو په پایله کې زده کړه په زړه پورې سرته رسيږي.

د ښاغلو ښوونکو د تدریس خپلې تجربې د لوست په پرمخ وړلو کې ډېر مهم رول لري. ګران ښوونکي دې هڅه وکړي له خپلو تجربو څخه په ګټې اخیستنې د تدریس بهیر ګټور کړي.

له ثانوي دورې (لسم، یوولسم او دولسم ټولګي) څخه فارغ زده کوونکي ښايي د پښتو ژبې د جوړښت او مخينې په اړه پوره معلومات ولري. په هر درسي ساعت کې د لوست تر څنګ باید د وینا او خبرو وړتیا په ځان کې ورروزي. سمه او رغنده لیک او وینا وکړي. داسې ورروزل شي، چې له ستونزو پرته په رادیو او تلویزیون کې ویاندې وکړای شي، شعر ولولي او ادبي ټوټه وړاندې کړي. لیکنه يې تر دې کچې پیاوړې شوې وي، چې د یو غوښتنلیک، خپلو خپلوانو ته لیک، د وثیقې، حجت لیک، تړونونو، د دوو تنو یا دوو یا زیاتو ډلو تر منځ د هر راز جوړ جاړي د لیک د لیکلو، ... وړتیا ولري. د

اړتیا په صورت کې بل چاته اړ نشي. ددې موخې ترلاسه کول د ښوونکي دنده ده او په هر درسي ساعت کې د هغه د کـــار او زیار په څرنګوالي اړه لري. ښايي درانه ښوونکي له زړه سوي او مسؤولیت څخه ډک چلند وکړي، له زده کوونکو سره ددې موخې په تر لاسه کولو کې مرسته وکړي او له دې لارې د افغانستان په راتلونکې کې د خپل کار او زیار او نه ســتړې کېدونکو هلو ځلو روښانه انځور ننداره کړي.

یادداشت:

له مورنۍ ژبې پرته د پښتو لوست کتابونه دري ژبو سیمو ته هم لیکل شوي دي. د افغانستان د اساسي قـــانون د ۱۶ مادې له مخې پښتو او دري د افغانستان دوه رسمي ژبې دي. د افغانستان هر اوسیدونکی ښايي د خپلې مورنۍ ژبې ترڅنــګ دا بله رسمي ژبه هم زده کړي. يو زده کوونکی بايد له ښوونځي څخه تر فراغت وروسته پردواړو ژبو وپـــوهيږي، افهـــام او تفهيم پرې وکړای شي او د امکان تر بريده پرې خپلې اړتياوې پوره کړي. ددې موخو د تر لاسه کولو لپاره د دويمې ژبې په توګه د پښتو د لوست د کتابونو د تاليف په اړه له پوره غور او سوچ څخه کاراخيستل شوی. هڅه شوې هر لوســـت د زده کوونکو د عيني اړتياوو پر بنسټ چمتو شي؛ ورځنۍ اړتياوې، د جملو جوړښت او ساده ګي، د نوو کلمو کارول، د جملـــو منطقي تسلسل او داسې نور په پام کې ونيول شي. که د پښتو دا کتابونه د ښاغلو ښوونکو له خوا په سمه او رغنـــده توګـــه تدريس شي، باور دی، چې له ښوونځي څخه تر فراغت وروسته به زده کوونکي وکړای شي خپلې ورځنۍ اړتياوې له ستونزو پرته هوارې کړي.

ښايي يادونه وشي، چې په مورنۍ ژبې کې يو زده کوونکی خبرې کولای شي او په اورېدلو يې مفهوم تر لاسه کـــولای شي، خو يوازې لوستل او ليکل نشي کولای. په داسې حال کې چې له مورنۍ ژبې پرته خبرې کـــول، اورېـــدل، لوســـتل او ليکل، څلور واړه، د زده کړې له لارې ترسره کېږي. په دې توګه د دويمې ژبې په زده کړه کې تر هرڅه دمخه پـــر خبـــرو کولو او پر خبرو پوهېدلو (اورېدلو) ټينګار کېږي. لوستل او ليکل په دويم پړاو کې راځي.

د دويمې ژبې په توګه د پښتو لوست په کتابونو کې د لوست د متن په پرتله په فعاليتونو او تمرينونو زيات زور اچـــول شوی دی. درانه ښوونکي دې، دې ټکي ته پوره پام وکړي، چې د متن د منځپانګې (محتوی) له مخې زده کوونکي ډېر فعال وساتي، د ټولګي مخې ته يې راوغواړي او خبرې پرې وکړي، که څه هم په لومړي سرکې دا خبرې پوره معنا ور نه کـــړي. په ورو ورو زده کوونکي له خبرو سره مينه پيدا کوي، خپلو نيمګړتياوو ته پام کوي، ډاډمن کېږي او له ډاره پرته د نورو پـــه وړاندې خبرې کوي او د نورو پر خبرو ځان پوهوي. ښوونکي ته سپارښتنه کېږي، تر ډېره بريده په ټـــولګي کـــې لـــه زده کوونکو سره په پښتو خبرې وکړي او هغوی هم وهڅوي، چې د پښتو په درسي په ساعت کې په پښتو وغږيـــږي. ښـــاغلي ښوونکي دې د يو لوست موضوع د اوونۍ په اوږدو کې بيا بيا تکرار کړي او ډاډ دې ترلاسه کړي، چې د زده کوونکـــو په خبرو کولو او سمو اورېدلو کې ښه والي راغلی دی. درانه ښوونکي دې د خپلو تدريسي تجربو له مخې لـــه بـــېلا بېلـــو ميتودونو او لاروچارو څخه ګټه واخلي او هڅه دې وکړي لوست د زده کوونکو له مينې سره برابر چمتو کـــړي. د ټـــولګي دننه د غونډو جوړول، تمثيل، د مقالو ليکل، د جرېدو جوړول او د ورځنيو اړتياوو په اړه خبرې کول داسې فعاليتونـــه دي، چې زده کوونکي د ژبې زده کړې ته هڅوي او مرسته ورسره کوي.

د لوست په دې کتابونوکې د ورځنيو موضوعاتو په اړه يو لړ مرکې راغلي. ښوونکی دې دا مرکې پـــه زده کوونکـــو سرته ورسوي. توپير نه کوي، که مرکې ټکي په ټکي د کتاب له متن سره سمون ونه لري. درانه ښوونکي دې زيار وکـــاږي، ددې مرکو په څېر نورې په زړه پورې موضوعګانې پيدا او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي، چې په لنډو مرکو يې ســـرته ورسوي. دلته د ښوونکو مهارت، وړتيا، تجربه، مينه، مسؤوليت او نه ستړې کېدونکی کار خورا ډېر اغېزمن واقع کېـــږي. له دولسم ټولګي څخه د دويمې ژبې فارغ زده کوونکی بايد تر ډېرې کچې په پښتو خبرې وکړای شي، نورو ته خپل مفهوم

او غوږنته له ستونزو پرته ورسولای شي، د نورو پر خبرو او ویناوو پوه شي او هغه څه چې غواړي له ستونزې پرتـــه پخپلـــه ولیکلای شي.

د داسې یوې ورځې په هیله، چې د افغانستان ټول وګړي له ستونزو پرته د یو واحد ولس په توګه یو د بـــل پـــه ژبـــه وپوهیږي او خپلې اړتیاوې پوره کړي.

د ثانوي دورې د پښتو ژبې درسي کتابونه د افغانستان د تعلیمي نصاب د عمومي هدفونو پر بنسټ په دې موخه تالیف اوتدوین شوي دي چې زده کوونکي په ټولنیزو اړیکو کې د ژبې پر ارزښت، د معیاري ژبې پر پېژندنې او د ملـــي، دینـــي او فرهنګي ارزښتونو په پیاوړتیا کې د هغې په رول وپوهیږي. ښه او رغنده تدریس د زده کړې د عمومي پروګرام یوه برخه ده او ټاکلو موخو ته رسیدل آسانوي.

## د مضمون د تدریس لارښود

ددې لارښود په لومړي څپرکي کې د درسي مضمون له عمومیاتو او لومړنیو خبرو او د تدریس او ارزونـــې لـــه لارو چارو سره بلد شوئ. په دې څپرکي کې به د تدریس له کلني پلان او د هر لوست د تدریس له لارو چارو سره بلد شئ.

**د تدریس کلنی پلان:**

د تدریس کلنی پلان څرګندوي چې د لوست کتاب پر یوه تعلیمي کال څنګه وویشل شي. زموږ په هېواد کې تعلیمي کال د سړو او تودو سیمو لپاره یو له بله توپیر کوي. په تودو سیمو کې تعلیمي کال د مني د فصل په پیل پیلیږي. د مرغومې د میاشتې په دوه اوونیو کې څلور نیم میاشتنۍ ازموینه اخیستل کېږي. وروستۍ دوه اوونۍ زده کوونکي رخصتیږي. د پسرلي د فصل په وروستۍ میاشت، یعنې غبرګولي کې په دوو لومړنیو اوونیو کې آزموینه اخیستل کېږي او له هغـــې وروســـته زده کوونکي د کال وروستۍ رخصتي اخلي.

په سړو سیمو کې تعلیمی کال د وري په لومړۍ پیلیږي. څلورنیم میاشتنۍ ازموینه د چنګاښ په میاشت کې اخیســـتل کېږي. زده کوونکي له ازموینې څخه وروسته د زمري په دوو لومړنیو اوونیو کې رخصتیږي. د تعلیمي کال په پـــای کـــې د لیندۍ د میاشتې په لومړیو دوو اوونیو کې کلنۍ ازموینې پیلیږي او له هغې وروسته زده کوونکي د ژمي په رخصـــتۍ ځـــي. تعلیمي کال ۲۸ اوونۍ دوام مومي. د کلني پلان د تنظیم لپاره د لوست د کتاب مخونه پر ۲۸ عنوانونو وېشل کېږي. لاسته راغلې شمېره په یوې اوونۍ کې د لوست د کتاب د تدریس برخه څرګندوي. د هر لوست په ورځني پلان کې د هر لوســـت د زده کړې موخې، د تدریس او ارزونې لارې چارې، د تدریس توکي، د تدریس فعالیتونه (د لومړنیو فعالیتونو سرته رســـول، لکه سلام، روغبړ، د حاضرۍ اخیستل، د پخواني لوست پوښتنه، د انګیزې رامنځته کول، د نوي لوست وړاندې کـــول او د زده کوونکو د زده کړې ارزول)، د لوست د متن او پای په اړه پوښتنې او د زده کوونکو او ښوونکو لپاره اضافي معلومـــاتو برخه جوړوي. هغه په ځیر وګورئ او په پوره زړه سوي او رغنده ډول یې د شونتیا تر کچې پر خپلو زده کوونکـــو عملـــي کړئ. د لسم، یوولسم او دولسم ټولګي د پښتو د لوست کتابونه ۲۸ لوسته لري. هر لوست په یوې اوونۍ کې تدرســـیږي. د وروستي ساعت په پای کې ښوونکی ډاډ تر لاسه کوي چې زده کوونکي د لوست ټولې موخې تر لاسه کړې دي؛ پوهه یې زیاته شوې؛ ژبنۍ وړتیا یې پیاوړې شوې او ذهنیت یې مثبت بدلون موندلی دی. په دې موخو کې د ژبې زده کـــړه، خبـــرې کول او لوستل تر هرڅه دمخه دي.

# لومړی لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع | دعا | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د لوست په اصلي مفهوم به پوه شي.<br>– د حمد او مناجات د توپیر په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– د دعایې په گټو او ارزښت به خبرې وکړای شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په ډله ییزه توگه تر سره کړي.<br>– زده کوونکي به د دعا یې په اړه څو کرښې ولیکلای شي.<br>– په لوست کې به شخصي، ملکي، او استفهامي نومځري وپېژني او په خپلو لیکنو کې به یې وکارولی شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، په یوازې توگه کار، ډله ییز کار، لوستل، لیکل او خبرې کول. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندویه توکي | کتاب، قلم، تخته، تخته پاک، تباشیر، مارکر او کتابچه. | |
| د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي او تحریري ارزونه او د سوال او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، سترې مه شي، د حال او احوال پوښتنه، د نوي ښوونیز کال او د هغه په موخو باندې ځرگندونې او بیا په نوي لوست پیل کول. | ۴ دقیقې |
| د انگېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکیه! لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ او هم کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې وکړئ.<br>۱ــ ولې تاسې د کار په پیل کې دعا کوئ؟<br>۲ــ انسانان په تېره بیا مسلمانان په دعا کولو کې له لوی الله ﷻ څخه د څه شي غوښتنې کوي؟<br>۳ــ ستاسو په اند دعا څه ډول کلام دی؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| --- | --- | --- |
| ــ ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک د یوه زده کوونکي په وسیله د تختې پر مخ ولیکي.<br>ــ ښوونکی دې لوست په وارسره په څو زده کوونکو ولولي او په لوستلو کې دې له کمزورو زده کوونکو سره مرسته وکړي.<br>ــ ښوونکی دې لوست په مناسب غږ ولولي او ستونزمنې برخې دې د تختې پر مخ ولیکي. | ــ له زده کوونکو څخه یو تن د نوي لوست سر لیک له لارښوونې سره سم پر تختې لیکي.<br>ــ څو زده کوونکي په وارسره لوست د کتاب له مخې لولي او خپلو تېر وتنو ته ځیر کېږي.<br>ــ زده کوونکي به کتاب ته په غور سره گوري او د ښوونکي لوستلو ته به غوږ ونیسي. | |

| | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه دستونزمنو برخواوکلمو معنا وپوښتي او د زده کوونکو په واسطه به يې د تختې پر مخ وليکي. او بيا به د زده کوونکو په مرسته متضا دې کلمې پيدا کړي. | ـ زده کوونکي د کلمو په معنا ويلو کې برخه اخلي او په وار سره يې معنا وې او متضادې کلمې په نښه کوي او د تختې پر مخ يې ليکي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست د مفهوم په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړي او په خپله دې څارنه وکړي. | ـ زده کوونکي د لوست د مفهوم په اړه په وار سره خبرې کوي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو ووېشي او د لاندې پوښتنو په اړه دې پوښتنې وکړي اوښوونکی دې د زده کوونکو د کړو څارنه وکړي .<br>١ـ حمد او مناجات څه توپير لري؟<br>٢ـ مناجات په نظم کې ويل کېږي او که په نثر؟ | ـ زده کوونکي دښوونکې د پوښتنو ځوابولو کې فعاله ونډه اخلي.<br>ـ زده کوونکي ځواب ورکوي . |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې هر يو په خپله خوښه په څو کرښو کې يوه دعائيه وليکي. | ـ زده کوونکي په خپلومنځوکې په يوازې توګه ددعايې په اړه څوکرښې ليکي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په لوست کې شخصي، ملکي، او استفهامي ضميرونه په نښه کړي، په خپله دې له ډلو څخه څارنه وکړي او د اړتيا په صورت کې دې ورته لارښوونه وکړي. | ـ زده کوونکي په لوست کې ضماير (نومځري) په نښه کوي او د اړتيا په صورت کې له ښوونکي څخه مرسته غواړي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته داروابناد الفت په اړه لنډ معلومات ورکړي. | ـ زده کوونکي دې د ښوونکي خبروته غوږ ونيسي. |
| ـ ښوونکی دې د دعايې شعر په زده کوونکو باندې ولولي او له دوی څخه دې وغواړي چې مفهوم يې وليکي. | ـ زده کوونکي د دعايې شعر لولي او مفهوم يې په څو کرښو کې ليکي. |
| ـ ښوونکی دې د پېنځو لوست په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دريمه ورځ دې د لوست د پای کو رنۍ دنده زده کوونکو ته وسپاري او په بله ورځ دې و ګوري. | ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې په اړه د لار ښوونې يادداشت اخلي او په کورونو کی ور باندې کار کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

د دعا معنا غوښتنه، له اللهﷻ څخه سوال او د حاجت غوښتنه ده. د ديني پوهانو په اصطلاح دعا انشايي کلام دی چې پر خاشعانه او خاضعانه غوښتنې باندې دلالت کوي، يا په خضوع او کړه غاړه د لوی اللهﷻ څخه د يو څه غوښتنه ده، چې انسانان د خپلو دعا غوښتنو لپاره اللهﷻ ته سوال کوي. چې په ډېره تضرع سره د اللهﷻ څخه د خپل حاجت ترسره کول او د وسوسو د شر له منګولو څخه خلاصون غواړي.

په شريعت کې دعا هغه غوښتنه ده چې د اللهﷻ ثنا او نمانځنه په کې وي. ډېره ښه او په زړه پورې دعا فکري دعا او هغه دعا ده چې انسان له خپل اللهﷻ څخه مغفرت وغواړي او د بنده ګئ په لار کې په پاکۍ سره ګام کيږدي.

همدارنګه دعا د فاتحې، مغفرت غوښتنې، او ښښنې په معنا هم ده. کله چې انسان په يوه کار کې له کومې خطا اوګناه

سره مخامخ شي نو بيا د الله ﷻ څخه د ښښې او مغفرت غوښتنې لپاره دعا کوي په هغه صورت کې به د هغه انسان ګناه د لوی الله ﷻ په درګاه کې د منلو وړ وي چې له زړه څخه د الله ﷻ پر وړاندې د يوه عاجز بنده په توګه ودريږي او د خپلې ګناه د ښښې لپاره ورڅخه ښښنه او مغفرت وغواړي. نو د هغه عاشقانه تړاو له مخې چې د بندګانو له الله ﷻ سره دی لکه: چې فرمايي (اياک نعبد و اياک نستعين) يوازې ستا عبادت کوو، او يوازې له تا څخه مرسته غواړو.

دا لاربښوونه مؤلفينو ته ده

خضوع – کميني. عاجزي

خاضعانه – کميني.

خاشعانه – کميني – متواضع – عاجزئ

تضرغ – عذر اوزارۍ

**اضافي معلومات:**

**د ګل پاچا الفت لنډه پيژ ندنه:**

ګل پاچا الفت د مير سيد پاچا زوی او د سيد فقير پاچالمسی دی.

الفت په ۱۲۸۸ لمريز کال دلغمان دعزيز خان کڅ په منصور کلي کې زيږيدلی دی.

اروابښاد الفت ښوو نځی او پو هنځی نه دی لوستی، خو ديني زده کړې يې د سيمې له علما وو او پوهانو څخه کړي دي. صرف، نحوه، منطق، تفسير، معاني، بيان او احاديث يې لوستي دي. پر پښتو او دري ژبو سر بېره په عربي يې هم ليکنې کولای شوې. د اد بياتو او حقوقو په پوهنځيو کې يې د استاد په توګه دنده در لوده. نوموړی دلوړ استعداداو سپيڅلي شخصيت خاوند او د پښتو ادب د پنځو ستورو په کتار کې ځای لري.

الفت صاحب ډير پر هيزګار او د نيکو اخلاقو خاوند و. په خپل هېواد او خلکو زړه سواند او مين انسان و. دی پوخ ليکوال او تکړه شاعر او نقاد و. شعر او نثر يې د ټولنې د سمون لپاره دي.په خپلو ليکنو کې د ژور فکر خاوندو.

نثري ليکنې يې د لوړ پيغام در لودونکې، ډيرې خوږې او د هر لوستونکي د پوهېدو وړ دي.

ښاغلي الفت په لسګونو آثار ليکلي او ژبا ړلي دي، ځينې منظوم او منثور آثار يې دادي:

د پسرلي نغمه، عالي افکار، دآزادۍ پيغام، غوره نثرونه، د زړه وينا، ښه لمسون، بله ډيوه (هنري نثر) نو ی سبک او نوی ادب، ژ بنۍ څېړنې، لغوي څېړنه، څه ليک يا ليکپوهه، ليکوالي املا او انشاء، ادبي بحثونه، پښتوسندرې، ملي قهرمان، منطق او نور.

**ملا جمعه بارکزی:** دی د کندهار په (زوړماشور) کلي کې اوسېده، پر هيزګار او دیندار سړی و.

ښه شاعر و. اشعار يې عشقي او صوفيانه دي. جمعه بارکزی د رحمان بابا په مکتب پورې اړه لري. په (۱۲۵۹ هـ.) کال چې حج ته تللی و. په مکه معظمه کې مړ شو او هلته خاورو ته سپارل شوی دی

**اخځليکو نه:**


ـ د الفت نثري کليا ت ، اسمعيل يون ، د اطلا عاتو اوفرهنګ وزارت ،دولتي مطبعه ، ۱۳۷۰هـ.ش.

ـ د حاجي جمعه بارکزي د ديوان، سريزه او لغت نامه د پوهاند عبدالشکور رشاد، د افغانستان د علومو اکادمي،۱۳٦۰هـ ش کال

## دویم لوست

**د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه**

| د مطالبو سر لیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | نعت | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتی) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>–د نعت نظم به په روانه توگه ولوستلای شي.<br>– د نعت د بیتونو په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>– د نعت د مطلب لنډیز به په خپله ژبه وویلای شي.<br>– د درس د پای فعالیتونه به ځواب کړای شي.<br>– د نعت د نظم د شاعر په اړه به معلومات پیدا کړي.<br>– د نعت لوستلو او له یاده زده کولو سره به مینه پیدا کړي.<br>– د نعت د اصلي موخې په اړه به ځو کرښې ولیکلای شي.<br>– په نعت کې به راغلي لغتونه معنا او په مناسبو جملو کې وکاروي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، ځانگړی کار، په یوازې توگه لوستل او ډله ییز کار. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د نعتونو لیکلي کارتونه، کتاب او د ځینو نعتونو شعري بېلگې. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | تقریری ارزونه، تحریری ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه، د تېر لوست څخه پوښتنې او ارزونه بیا د نوي لوست د پیل کولو لپاره هڅوونکې پوښتنې او د لوست پیل. | ۴ دقیقې |
| د انگېزې رامنځته کول | نوی لوست په لاندې پوښتنو باندې پیل کړئ.<br>۱– تاسو د نعت د کلمې او موضوع په هکله څه اوریدلي او معلومات لرئ؟<br>۲– د کوم شاعر نعت مو لوستلی دی؟ یوازې نوم یې واخلئ.<br>۳– آیا کوم نعت مو په یاد زده دی، ځو بیتونه یې نورو ته ویلای شئ؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک د زده کوونکو له خولې څخه د تختې پر مخ ولیکي.<br>– ښوونکی دې د نعت بیتونه په زده کوونکو په پټه خوله ولولي او زده کوونکي دې لوستلو ته وهڅوي.<br>– ښوونکی دې د نعت بیتونه په مناسب غږ ولولي او بیا دې په معنا او مفهوم باندې خبرې وکړي!<br>– ښوونکی دې یو یو بیت په ځو زده کوونکو په وار سره ولولي او له هغوی څخه دې وغواړي چې بیت معنا او تشریح کړي. | – زده کوونکي د سرلیک په موندلو کې فکرکوي او د هغه په پیدا کولو کې ونډه اخلي.<br>– زده کوونکي د نعت بیتونه له ځان سره لولي او زده کوونکي خپلو نیمگړتیاوو ته ځیر کېږي.<br>– زده کوونکي بیتونو ته ځیر کېږي او د ښوونکي لوستلو ته غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په دغه فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. | |

<table>
<tr><td>– ښوونکی دې له زده کوونکو څخــه وغــواړي چـــې ستونزمن لغتونه ووايي. خپله ښوونکی دې هغه د تختې پر مخ ولیکي. معنا دې کړي او د جملو جوړولــو پــه لارو چارودې خبرې وکړي او لـــه زده کوونکــو څخـــه دې وغواړي چې په ځانګړې توګه ورته مناسبې جملې جوړې کړي.</td><td>– زده کوونکي په وار سره ستونزمن لغتونه وايي معنا يـــې زده کوي اوپه مناسبو جملو کې يې کاروي</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې له دوو تنو زده کوونکو څخه وغـــواړي چې د ټولګي په وړاندې د څلورم فعالیت پوښتنې ځـــواب کړي. اوهم دې د زده کوونکو سمو او ناسمو ځوابونـــو ته پاملرنه وکړي او د اړتیا په صورت کـــې دې ورســـره مرسته وکړي.</td><td>– دوه دوه تنه زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې د بیتونو مفهوم په شفاهي توګـــه لـــه زده کوونکو څخه وپوښتي.</td><td>– زده کوونکي په خپل وارسره د بيتو نو مفهوم په شـــفاهي تو ګه وايي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چـــې پـــه بیتونو کې نومځري په نښه کړي او ودې وایي چې کـــوم ډول نومځري دي؟<br>او د نه پوهېدو په صـــورت کـــې دې خپلـــه ښـــوونکی دنومځرو په اړه لنډې خبرې وکړي اوبېلګې دې پرتختـــه ولیکي.</td><td>– زده کوونکي په بيتونو کې نو مځري په نښه کـــوي، پـــه جملوکې يې کاروي او د اړتيا په وخت کې د ښوونکي لـــه ګټورو معلوماتو څخه ګټه اخلي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې د خواجه محمـــد بـــنګښ پـــه اړه لنـــډ معلومات وړاندې کړي.</td><td>– زده کوونکي د خواجه محمد بنګښ په اړه معلومات لاس ته راوړي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې زده کوونکو ته د متن لنډیز په خپله ژبـــه ووايي.</td><td>– زده کوونکي د متن لنډيز ته غوږ نيسي او د نعت مهـــم ټکي په خپلو کتابچو کې لیکي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې د لوستل شوي متن په پای کې د پوښـــتنو په ترڅ کې یوه لنډه ارزونه تر سره کړي.</td><td>– زده کوونکي د لوست پوښتنو ته ځوابونه وايي.</td></tr>
<tr><td>کورنۍ دنده:<br>– ښوونکی دې د پښتو لوست په لومړي او دويم درســـي ساعت کې په خپله خو ښه او په دريمه ورځ زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په کور کې د اسلام د ستر پيغمبر محمدﷺ په اړه څو کرښې معلومات وليکي او په بله ورځ خپله ليکنه نورو ته ولولي.</td><td>– د ښوونکي له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې يې سرته رسوي.</td></tr>
<tr><td colspan="2">د متن د ستونزمنو برخو روښانول:<br>سيرت: عادت، خصلت، کړه وړه، خوی، اخلاق، لاره، سنت خو دلته سيرت د حضرت محمد ﷺ ټولو خويونو، اخلاقو او کړو وړو ته سيرت وايي.</td></tr>
</table>

حبیب: د ملګري په معنا دی چې دلته یې مخاطب شکل (حبیبه) راغلی دی. یعنې شاعر په خپل کلام کې د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمدﷺ ته د ندا په ډول دا لفظ استعمالوي.
د دواړو کونینو څخه مقصد دنیا او اخرت دی.
نعت: نعت هغه موزون او منثور کلام دی چې د اسلام د ستر پیغمبرحضرت محمدمصطفیﷺ ستاینې پکې راغلې وي، دا ستاینې د مبارک د ډېرو لوړو ښو اخلاقواو کړو وړو استازیتوب کوي، هر شاعر په خپل کلام کې د مبارک، خوی او اخلاقو یادونه او ستاینه کوي. زموږ دپښتوژبې اوادب کتابونه پر حمد او نعت باندې پیلېږي. نعت کیدای شي چې په نثرکې هم وي. پخوانیو او اوسنیو شاعرانو په خپلو شعرونو کې د نعت بېلګې زیاتې راوړي دي چې ډېر مینه وال او لوستونکي لري.
په شعر کې راوړل شوي ضمیرونه په دې ډول دي:
ستا: د مفرد مخاطب لپاره – ملکي ضمیر
زه: د مفرد متکلم لپاره غښتلی شخصي ضمیر
ده: دمفرد دغایب لپاره – شخصي ضمیر
زما: د مفرد متکلم لپاره – ملکي ضمیر
مې: د متکلم لپاره– کمزروي (متصل ضمیر)
ته: د مفرد مخاطب لپاره – شخصي غښتلی ضمیر
دې: د مفرد غایب لپاره شخصي ضمیر
هر: د مفرد لپاره – مبهم ضمیر
خپل: اشتراکي ضمیر

خواجه محمد بنګښ: خواجه محمد بنګښ چې د نعت ویونکی دی، د پښتو له وتلو شاعرانو څخه دی، د خوشحال بابا معاصر او د اورنګ زیب په وخت کې ژوندی و.
خواجه محمد بنګښ د پښتو ژبې یو پوخ شاعر دی. ښه پیاوړی او معنا لرونکي کلام لري.
بنګښ د یو بشپړ دېوان څښتن دی. د دېوان یوه برخه یې مستېر راوټي په (ګلشن روه) کې خپره کړې ده. ده زیاتره عشقي، عرفاني، او اخلاقي شعرونه ویلي دي.
د دغه پیاوړي شاعر نور حالات او لیکنې معلومې نه دي، خو د پښتوژبې اوادب په شاعرانو کې د ښه مقام او درجې څښتن دی.

**اضافي معلومات:**
زموږ ګران پیغمبرﷺ اللهﷻ ته له ټولو مخلوقاتو څخه غوره دی اود بنده ګانو د لارښوونې لپاره د اللهﷻ له لوري رالېږل شوی دی. زموږ د ګران پیغمبرﷺ هره وینا یوازې د مسلمانانو د ژوند د سمون لپاره نه، بلکې د نړۍ د ټول بشریت د ژوندانه د سمون لپاره یوه غوره او په زړه پورې لارښوونه ده. د هغه هره وینا او کړنه د ټول بشر لپاره د بریالیتوبونو یوه سمه او غوره لاره ده.
د نړۍ زیاتره شاعرانو او لیکوالانو د حضرت محمدﷺ د سیرت ستاینې کړې دي. زموږ د ګران هېواد افغانستان د لرغونو شاعرانو څخه نیولې بیا تر ننه پورې ډېرو په خپلو دېوانونو کې د حضرت محمدﷺ د سیرت ستاینې کړې دي. راتلونکي شاعران او لیکوالان به هم دا لړۍ پر مخ بوځي.

**اخځلیکونه:**

ښاغلی ښوونکی کولای شي چې د دې لوست د لا زیاتو معلوماتو لپاره له لاندې اخځلیکونو څخه ګټه واخلي:

۱- احمد شاهي شهنامه، حافظ مرغزي، خپروونکې علامه رشاد اکاډمي.

۲- کلیات د حمزه شینواري،ترتیب اصف صمیم ، داطلا عاتو اوکلتور وزارت خپرونه.

۳- د خواجه محمد بنګښ دیوان، ترتیب او تدوین خیال بخاري، پښتو اکیډمي، پیښور، ۱۹٦۵م. کال

## دریم لوست

### د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | سوله | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د سولې متن به روان ولوستلای شي.<br>– د سولې د متن په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>– د سولې د مطلب لنډیز به په خپله ژبه وویلای شي.<br>– د متن د پای په فعالیتونو کې به فعاله ونډه واخیستلای شي.<br>– د سولې د ارزښت په هکله به معلومات پیدا کړي.<br>– په متن کې به د نوو کلمو په معنا پوه شي.<br>– د سولې د اړتیا او ارزښت په اړه به څو کرښې ولیکلای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، په یوازې توگه لوستل، په یوازې توگه عملي کار، ډله ییز کار. | |
| دتدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، قلم اودسولې اړونده انځوریز پوسترونه. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریری ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه، | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه، له تېر لوست څخه څو پوښتنې او بیا د نوي لوست د پیل لپاره د یوې انگیزې رامنځ ته کول. | ۴ دقیقې |
| د انگېزې رامنځته کول | ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو او یا دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړي<br>– د تېرو ټولگیو له درسونو څخه په گټې اخیستنې د سولې په برخه کې څه ویلای شئ؟<br>– ستاسو په اند سوله څه ته وایي او گټه یې څه ده؟<br>– د سولې د ارزښت په هکله یوه یوه جمله په وار سره ووایئ! | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک چې د زده کوونکو د هڅو او ځیرکۍ په پایله کې ښودل شوی، د زده کوونکو په واسطه د تختې پرمخ ولیکي. | – له زده کوونکو څخه یو تن د نوي لوست سرلیک پر تختې لیکي. | |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن له ځان سره په ټیټه خوله ولولي او په مفهوم دې فکر | – زده کوونکي د متن هر پراگراف بېل بېل له ځان سره لولي او مفهوم ته یې ځیر کېږي. | |

| | |
|---|---|
| وکړي. | |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې هر پراګراف بېل بېل په لوړ غږ ولولي او ښوونکی دې د هغوی تېروتنې اصلاح کړي. | - زده کوونکي متن په لوړ غږ سره لولي او د خپلو غلطیو سمون ته پاملرنه کوي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکوته لارښوونه وکړي چې تختې ته په وار سره راشي او د سولې په اړه خبرې وکړي. | - زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم نوموړې فعالیت تر سره کوي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په لاندې موضوع باندې په خپلو ډلو کې خبرې وکړي او خپل نظرونه دې څرګند کړي چې څنګه کولای شو د خلکو په ذهنونو کې د سولې ساتنې اصل وروزو؟ | - زده کوونکي په خپلو ډلو کې په نوموړې موضوع باندې خبرې کوي او وروسته څو تنه زده کوونکي په وار سره خپل نظریات نوروته وړاندې کوي. |
| - ((خلک ډول ډول دي)) زده کوونکي دي ووايي چې دا جمله څه معنا لري؟ د ټولنې په ګټه ده که په تاوان؟په دې برخه کې دې خپل خپل نظرونه څرګند کړي. | - زده کوونکي بېلا بېل ځوابونه وایي او خپل نظریات څرګند وي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي، چې دوه زده کوونکي د نورو په استازیتوب په وار سره په دې خبرې وکړي چې څنګه ستونزې حل کړو؟ | - زده کوونکي د ستونزو د حل کولو لپاره د خبرو، جرګو، مېلمستیا او بېلا بېلو غونډو په اړه خبرې کوي او لازم ځوابونه وړاندې کوي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وپوښتي چې ښځې د سولې په راوستلو کې څه رول لوبولای شي؟ | - زده کوونکي دې په دې اړه بېلا بېل نظریات په خپلوکتابچو کې ولیکي او بیا دې په وار سره په ټولګي کې ووایي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې لاندې کلمې معنا او په جملو کې وکاروي<br>ښیګېه – اتلولي – ګواښ – پخلاینه – تحمیل – تجاوز | - زده کوونکي دغه کلمې معنا او په جملو کې استعمالوي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د متن لنډیز په خپله ژبه ووایي. | - څو زده کوونکي په وار سره د متن لنډيز بیانوي. |
| - ښوونکی دې د کورنۍ د ندې په اړه زده کوونکوته لا رښوو نه وکړي. | - زده کوونکي په کورنۍ د نده ځانونه پوهوي او په کور کې ور باندې کار کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**دوست محمد کامل:**

د فوځون خان زوی په ختې مومند دی. په ۱۳۳۴ هـ ق کال په پېښور ښار کې زېږېدلی. لومړنۍ زده کړې یې په مردان

کې او نورې زده کړې یې په اسلامیه کالج کې ترسره کړي دي او د (M.A.) برې لیک یې د علیګړ له پوهنتون څخه تر لاسه کړی دی، نوموړی د پښتو ژبې تکړه شاعر، ادیب او سیاستپوه و. لومړنی کار یې دا و چې په خوشحال خان بابا یې په اردو ژبه یو پوره کتاب لیکلی چې له ده څخه مخکې په خوشحال بابا باندې چا دومره څېړنه نه وه کړې. د خوشحال خان بابا کلیات او د سکندر خان ختک دیوان یې د خپلې څېړنې او سریزې سره د چاپ ډګرته راوایستل. بل لوی کار یې چې کړی دعبدالرحمان بابا په شاعرۍ او تصوف باندې یوه پخه درنه علمي څېړنه کړې ده. دوست محمد کامل مومند په ۱۴۰۱ه ق کال کې وفات شوی دی.

**محمد ارسلان سلیمي:**

د ژوندي زړه او د تېزو احساساتو څښتن او تکړه لیکوال و. په ۱۲۹۳ه ل کال د وردګو ولایت په ګنډکول نومي کلي کې زېږېدلی، په خټه مایار وردګ او د محمد اسد خان زوی دی. د عربي ژبې دودیز کتابونه یې څه په ځانګړې ډول او څه د کابل په عربي دارالعلوم کې تر شپږم ټولګي پورې لوستي دي. په پښتو او پارسي ژبو کې د ښه قلم څښتن و او په انګریزي ژبه هم پوهېده. ښاغلی سلیمي د نیکبختۍ او په ځان باور په نومونو د (برتراندرسل او ډاکټر سموئېل سمایلز دوه کتابونه په پښتو ژبه ژباړلي. سلیمي صاحب د وخت په حکومتونو کې بېلا بېلې دندې سرته رسولي او یو لوړ رتبه مامور و. په ۱۳۵۷ هـــ ش کال د غوایي د میاشتې په ۷ نېټه وفات شوی.

**اضافي معلومات:**

په قران عظیم الشان کې د سولې په هکله زیات ټینګار شوی(الصلح خیر) یعنې په دې معنا چې تاسو په خپلو منځونو کې سوله وکړئ او همدغه سوله ده چې کرکې او جګړې له منځه وړي.

سوله، د جنګ، لانجو او انسان دښمنۍ ضد کلمه ده. کله چې په یوې ټولنه کې جنګونه او انسان وژنه دوام پیدا کړي او د ټولنې ټولنیز ژوند له ګواښ سره مخامخ شي، نو د سولې، امن او یو تر بله د خواخوږۍ اړتیا پیښیږي او د جنګ، لانجو، تاوتریخوالي او ګډوډیو پر ځای د سولې د ټینګولو، امن راوستلو او انساني خواخوږۍ په اړتیا فکر کېږي او په دې اړه رغنده هلې ځلې دوام پیدا کوي.

جنګ د بربادیو او ګډوډیو نوم دی، خو سوله د سوکالۍ، نېکمرغۍ، او ودانۍ په لور وګړي رهبري کوي. ځکه، خو د انسانانو په ټولنیز ژوند کې سوله لوړ ځای لري او په درنه سترګه ورته کتل کېږي. د کوم هېواد وګړي چې له نورو سره او یا د ځینو عواملو له امله په خپلو کې په جګړه اخته وي، نو په ټولنیز ورځني ژوند کې له ډول، ډول کړاوونو سره لاس او ګرېوان وي. د ټولنیز ژوند په بېلا بېلو برخو کې یې د وړاندې تګ او پرمختګ په لار کې خنډونه شتون لري. له دې امله د ټولنې پوه او خیرغوښتونکي شخصیتونه د سولې پر اړتیا زیات ټینګار کوي.

افغانانو د خپل اوږده تاریخ په بېلا بېلو پړاوونو کې د جنګ او سولې ډېر پړاوونه شاته پرېښې دي. کله چې جنګ پرې تپل شوی او یا جنګ ته اړ شوي دي، نو تر څنګ یې سوله ییزې هلې ځلې هم نه دي هېرې کړي او کوښښ یې کړی چې د خپلو خلکو لپاره د سوله ییز ژوند امکانات برابر کړي چې د سولې دغه انعکاس پښتو ادب ته هم په پراخه توګه لاره موندلې او د پښتو ادب ، شاعرانو، او لیکوالانو په خپلو لیکنو کې د سولې او امن پر اړتیا زیات ټینګار کړی او په پراخه توګه یې خپل خلک د جنګ پر ځای سوله ییز ژوند ته رابللي او د جنګ جګړو ورانوونکې پایلې یې ورته په ښنه کړې دي.

افغانان او په ځانګړې توګه پښتانه که څه هم د نړۍ پرمخ په توره، مېړانه او اتلولۍ کې ځانګړی نوم لري، خو ترڅنګ یې تر بل هرچا زیات په امن او سوله مین دي. تورې او جنګ ته هغه وخت هڅه کوي چې ورته اړ کړای شوي، د چا له خوا ورباندې تېری وشي. ملي هویت او خپل ځان یې له ګواښ سره مخامخ شي، خو که داسې نه وي او له کوم لوري او د

چا له خوا ور باندې برید نه وي شوی، نو بیا تر بل هر قام زیات د سوله ییز ژوند له دوام سره مینه لري او انسان ته د انسان په توګه ارزښت ورکوي. له هغوی سره انساني خواخوږي لري او د ورځنیو ستونزو په له منځه وړلو کې یې هڅې او هلې ځلې کوي.

افغانان په دې پوهیږي چې له سولې پرته ورځنۍ چارې لکه څنګه چې ښایي پرمخ نه شي تللی. افغانان له سولې او امن سره ځکه مینه لري چې د جنګ پایلې ورته جوتې دي او افغانان په خپل هېواد، سیمه او نړۍ کې ځکه سوله او امن غواړي چې د پرمختګ یوازینی لامل یې بولي، ځکه د ټولنیز ژوند بهیر هغه وخت په سم لوري روانېدلی شي چې د هغې ټولنې وګړي په ډاډمنه توګه خپلې ورځنۍ چارې سمبالې کړي او افغانان په دې ډېر ښه پوهېږي. کله چې زموږ پر خلکو جنګ تپل شوی، نو ورته معلومه شوې ده چې ټولې ورځنۍ کړنې یې په ټپه درېدلې او پخوانۍ لاس ته راوړنې یې هم په اوبو لاهو شوې او ټولنیز ژوند یې ګډوډ شوی دی. کله چې په هېواد کې کورنۍ جګړې او ګډوډۍ منځ ته راغلې، نو افغانانو ته ثابته شوه چې د ژوند ټولې بریاوې یې یو په بل پسې په اوبو لاهو شوې، نو دې اصل ته په پاملرنې سره زموږ د هېواد هر لیکوال او شاعر خپل ټول وس او ځواک په کار اچولی او داسې څه یې خپلو هېوادوالو ته وړاندې کړي دي چې د هغو په رڼا کې دوی وکړای شي د خپل ژوند جوړولو ته ځیر شي او هغه لاره ونیسي چې د هغې په واسطه په هېواد کې امن، سوله او ثبات ټینګ شي او دوی ته د سوکاله ژوند موقع په لاس ورشي.

زموږ ټولنه یوه اسلامي ټولنه ده. دوی تر بل هرڅه زیات په خپله اسلامي عقیده ټینګ ولاړ دي چې د همدغې سپیڅلې عقیدې په رڼا کې د خپل ورځني ژوند چارې سمبالوي، ځکه دوی په دې پوهېږي چې اسلام د سولې دین دی. اسلام انسانانو ته د ورورۍ او مینې پیغام ورکوي او اسلام خپلو لارویانو ته لارښوونه کوي چې د نړۍ له نورو انسانانو سره په سوله او ملګرتیا کې ژوند وکړي او ښې اړیکې وساتي. همدا لامل دی چې افغانان د سولې، ثبات او انسان پالنې پلویان دي او د زړه له کومې دا غواړي چې په خپل هېواد او سیمه کې د ورځني ژوند په موخه د دوی په چاپېریال کې سوله او امن وي او دې لوړې موخې ته د رسېدو لپاره تر هرڅه د مخه ښوونې او روزنې ته اړتیا ده، ځکه د ریښتینې پوهې په ذریعه کولی شو خپله دغه موخه ترلاسه کړو.

د اسلام په سپیڅلي دین کې سولې او سوله ییز ژوند ته ډېر ارزښت ورکړل شوی او په انساني ټولنه کې د سولې پر دوام باندې ټینګار شوی دی. سوله د صلحې په بڼه عربي کلمه ده او په عربي ژبه کې په یوولسو معناوو راغلې ده لکه چې امام راغب اصفهاني او نورو عربي ژبپوهانو یې دغه معناوې په لاندې ډول راوړې دي: ۱– ګټه او منفعت ۲– وړتیا او مناسب والی ۳– ښه والی۴– استعداد ۵– جوړښت او بشپړتیا چې له یوه شي او یا له چا څخه نیمګړتیاوې لرې کړای شي. ٦– نیکي او ښېګڼه ۷– پخلاینه ۸– یووالی ۹– اتفاق ۱۰– او ر بند او د جګړو بندول.

دا خو د سولې لغوي معناوې وې چې وړاندې شوې خو د سولې د اصطلاحي تعریف په اړه د علماو او فقهاوو بېلا بېل تعریفونه کړي دي دا ځکه چې د سولې د رامنځه ته کولو لارې چارې بېلا بېلې دي لکه:

په اقتصادي برخو کې سوله، د ودونو په برخه کې سوله، د مېړه او مېرمنې ترمنځ سوله، د جګړه مارو ډلو ترمنځ سوله او داسې نورو برخو کې، خو دلته له نورو اړخونو څخه تېرېږو، یوازې د جنګ او جګړو د پای ته رسولو او پر ځای یې د سولې د ټینګښت په اړه د فقهاوو، مفسرینو او د عربي ژبې د پوهانو اصطلاحي تعریف راوړو:

سوله د جنګ بندول، د شخړو لرې کول او د ګډوډیو ختمول دي. د هغو شرایطو پر بنسټ چې د سولې د شرایطو په نامه یادېږي، یا په بل عبارت سوله هغه تړون دی چې جنګ او شخړه پرې ختمېږي. کېدای شي چې دا جګړه لفظي یا وسله واله او یا بل ډول وي.

په نړۍ کې داسې ستونزه نه شته چې د حل لارې ونه لري، خو کله کله انسانان په ځینو برخو کې د ستونزو او لانجو

حل ناشونی بولي. په واقعیت کې داسې نه ده بلکې تاریخ جوته کړې ده چې د نړۍ پرمخ ډېرې سترې لانجې، شخړې او ستونزې د سوله ییزو هلو ځلو په پایله کې اوارې شوي او انسانیت ته یې له هلاکت څخه خلاصون ورکړی دی. دا که د خبرو اترو له لارې وي. که د جرګو له لارې وي او که د غیرو مستقیمو خبرو اترو له لارې وي، خو مهمه دا ده چې موخه ترلاسه شي او د انسانانو ترمنځ سوله ټینګه او تاوتریخوالی له منځه ولاړ شي.

دلته ده چې د انساني ټولنې د ورځني ژوند بهیر خپله لار پیدا کوي. او انسانان د یو بل په وړاندې د مسؤولیت احساس کوي. شخړې او لانجې خپل ځای د سولې ټینګښت ته په خپلو کې جوړ جاړي او دوستۍ ته پرېږدي. او په پایله کې انسان د انسان په توګه په ټولنه کې ژوند کوي. که د یوې ټولنې غړي غواړي چې د خپل ورځني ژوند ټولنیزې چارې په ښه توګه سمبالې کړي. نوتر هر څه د مخه ورته په کار ده چې په خپل چاپېریال کې د سولې په ټینګښت او پایښت فکر وکړي او داسې لارې چارې ولټوي چې د دوی د ټولنیز ژوند په سمبالښت کې ورسره مرسته وکړي چې په خپلو کې وروري، مینه او د سولې تأمین دی.

**اخځلیکونه:**

ښاغلی ښوونکی کولای شي چې د دې لوست د لا زیاتو معلوماتو لپاره له لاندې اخځلیکونو څخه ګټه واخلي:


۱ــ په پښتوادب کې دسولې انعکاس ، څیړنوال محمد عارف غروال ،د علومو اکاډمي کابل ،۱۳۸۸هــ ش کال .

۲ــ د پښتونثر هینداره ، پوهاند صدیق الله رښتین ،پیښور چاپ .

۳ــ دسولې ټیکری، محمد حلیم فدایي

۴ــ د سولې قلم، محمد حلیم فدایي

# خلورم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ادب څه ته وایي؟ | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي دالاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– د ادب په تعریف به وپوهیږي.<br>– د ادب، ادبیات، ادبپوهنه، کره کتنه، ادبي تاریخ، ادبي ژانر (ډول) په اصطلاحاتو به وپوهیږي.<br>– د ادب ډولونه به وپیژني.<br>– د لوست د پای په فعالیتونو کې به په فعاله توګه برخه واخیستلی شي.<br>– پوښتنو ته به په شفاهي توګه ځوابونه وویلای شي.<br>–متن به سم ولوستلای شي.<br>– د متن لنډیز به په څو کرښو کې ولیکلای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، په یوازې توګه کار او ډله ییز کار. | |
| دتدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر او قلم.<br>د لوست د لغتونو او اصطلاحاتو لیکلي کارتونه | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه، | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام سترې مه شي، د حال او احول پوښتنه، له تېر لوست څخه څو پوښتنې او بیا په نوي لوست پیل کول او د ښه پیل لپاره د زده کړې ډاډمنه فضا جوړول. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ او کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري وکړئ.<br>۱ – ستاسو په نظر ادب څه ته وایي؟<br>۲– آیا زموږ او ستاسو له یو بل سره خبرې اترې ادبیات بللی شو؟<br>۳– شعر او داستان هم د ادب برخې دي؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې د لوست ټاکلې برخه په څو زده کوونکو په وار سره ولولي او په لوستلو کې دې له زده کوونکو سره پوره مرسته وکړي.<br>ـ ښوونکی دې نوی لوست په مناسب غږ زده کوونکو ته ولولي او ستونزمنې کلمې او اصطلاحات دې د تختې پر مخ ولیکي. | ـ څو زده کوونکي په وار سره نوی لوست د کتاب له مخې په مناسب غږ لولي او لفظي تېروتنوته متوجې کېږي.<br>ـ زده کوونکي لوست ته په غور ګوري او د ښوونکي لوستلو ته غوږ نیسي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د ستونزمنو کلمو او اصطلاحاتو معنا وپوښتي او د هغوی ځوابونه دې واوري. د ناسموځوابونوله اوریدوڅخه وروسته دې په خپله ښوونکی د لوست کلمې او اصطلاحات ورته معنا کړي او د تختې پر مخ دې ولیکي. | –زده کوونکي د کلمو او اصطلاحاتو په معنا کولو کې برخه اخلي او د کومو اصطلاحاتو په معنا چې پوه شوي نه دي. ځان پرې پوهوي او هغه په خپلو کتابچو کې لیکي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د متن ټاکلې برخه له ځان سره په پټه خوله ولولي او بیا دې مفهوم په خپله ساده ژبه ووایي. | – زده کوونکي لوست په پټه خوله لولي او د مفهوم په ویلو کې له یو بل سره سیالي کوي. |
| – ښوونکی دې دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي او دوی ته دې لارښوونه وکړي چې له یو بل څخه د ادب په اړه پوښتنې وکړي او په خپله ښوونکی دې د دوی ځوابونو ته پوره پاملرنه وکړي. | – دوه دوه زده کوونکي د ټولګي په وړاندې له یو بل څخه د ادب په اړه پوښتنې کوي اویو بل ته ځوابونه وایي. نور زده کوونکي د دوی سمو او نا سمو ځوابونو ته غوږ نیسي او سم ځوابونه پیدا کوي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د هغو ادبي ژانرونو نومونه واخلي چې دوی یې پېژني اوهم څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په وار سره د کره کتنې په اړه خبرې وکړي. | – زده کوونکي د ادبي ژانرونو نومونه اخلي، څو زده کوونکي دکره کتنې د ګټو په اړه معلومات وړاندې کوي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د لوست لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي. | ـ زده کوونکي نوي لغتونه معنا او بیا ورته مناسبې جملې جوړوي. |
| ـ ښوونکی دې د متن لنډیز زده کوونکو ته ووایي. | – زده کوونکي د ښوونکي تشریح ته غوږ نیسي او مهم ټکي په کتابچو کې لیکي. |
| ـ ښوونکی دې د نوي لوست ارزونه په څو پوښتنو سره تر سره کړي. | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي او که پوه نه شول له ښوونکي څخه مرسته غواړي. |
| ـ ښوونکی دې د درسي ساعت په پای کې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په خپله خوښه دلوست دهرساعت په پای کې د متن په موضوعاتو کې ځانته یوه موضوع د کورنۍ دندې په توګه وټاکي او د هغې په اړه دې لس کرښې ولیکي. په راتلونکي درسي ساعت کې دې ولولي. | ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع په کتابچو کې لیکي او په کور کې د موضوع په اړه لیکنه کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

اصطلاح: داسې ژبنی ترکیب دی چې په هغه کې ټولې کلمې په خپلو اصلي معناوو نه استعمالېږي او د ټولو کلمو د معناوو له ترکیب څخه داسې یو واحد مفهوم لاس ته راځي چې په ببلا ببل ډول د هرې کلمې له اصلي معناوو سره نبغه په نبغه اړیکه نه لري. لکه: سترګې پټول – له حقیقت څخه تېرېدل معنا لري. چې دا معنا له اصلي معنا څخه ډېره لرې ده.

تکل: طرحې یا خاکې ته وایي. یو داستان ډوله لیکنه ده چې د داستان بشپړې ځانګړتیاوې نه لري، خو داستان ته ورته

دی.

ادب: عزت، ځيرکتيا، سرېتوب، تميز، تهذيب، پوهه، زده کړه، حيا، روزنه، پالنه په معناوو استعماليږي.

ادبيات: د بشر هغه فکري پنځونه ده چې په بېلا بېلو ژبو کې د ولسونو د تمدن، کلتور، او ټولنيز ژوند ټول اړخونه څرګندوي، شفاهي وي که ليکني خو چې هنري ارزښت ولري ادبيات بلل کېږي او ادبيات د ادب جمع ده.

ژانر: د ډول، ادبي اثر، شکل او بڼې په معنا دی. په پښتو ژبه کې ناول، رومان، لنډه کېسه، شعر، ادبي ټوټه او نور ادبي ژانرونه( ډولونه) دي.

اپيک: وياړنې او حماسې ته وايي: حماسه په لغت کې د زړور توب په معنا او په ادبي اصطلاح کې حماسه د ادبياتو يو موضوعي ډول دی چې په دې ډول ادبي آثارو کې رزمي او جنګي پېښې په حماسي او داستانې ډول بيانيږي. حماسه هم په نظم کې وي او هم په نثر کې، هغه اشعار چې جنګي او رزمي ټکي پکې راغلي وي او داستاني شکل ونه لري په حماسو کې نه حسابيږي. جنګي، رزمي او د وياړنو اشعارو ته حماسه نشو ويلای، حماسې درې ډوله دي تاريخي، عشقي، او مذهبي.

**اضافي معلومات:**

ادب څه ته وايي؟

د ادب لغوي او اصطلاحي پېژندنه:

که څه هم د نورو ټولنيزو علومو او فنومو په څېر ادب کوم داسې ټاکلی او ځانګړی تعريف نه لري چې هر چېرې د هر چا لپاره يو شان د منلو وړ وي، خو له دې سره سره د ادب پوهانو له خوا چې د ادب کلمې د لغوي او اصطلاحي روښانتيا، تعبير او پيژندنې په برخه کې څه ويل شوي دي هغه ډېر ګټه ټکي سره لري.

**ادب:** اصل يې "هذب" دی د بې عيبه په معنا.

د هذب کلمه په اصل کې د هغې ونې لپاره استعمالېدله چې ځينې څانګې او ځينې ښاخونه به يې ترې غوڅ کړل او صافه به شوه. وروسته دا کلمه له محسوساتو څخه معنوياتو ته را نقل شوه. او هغه چاته هم وويل شول چې عيبونه به يې ورک شول يعنې مهذب به شو.

همدارنګه صديق الله ريښتين د ادب تعريف داسې کوي:

**ادب:** د عربو په لغت کې د پوهې، ځيرکی، بلنې او د هر شي د اندازې د ساتلو په معناوو راغلې ده. په اصطلاح کې ادب پردوه ډوله دی. يو نفسي ادب دی چې اخلاقي فضيليت او ښېګړې ته وايي او بل درسي ادب دی چې له دې څخه مطلب په ښه توګه ويل، ليکل او خپل مطلب ښکاره کول دي.

**د ادب علم:** د ادب علم په لومړۍ معنا د اخلاقو له علم څخه عبارت دی. او په دويمه معنا د ادب علم هغه پوهنه ده چې د ويلو، ليکلو او ښې وينا ډولونه رابښيي. د نظم او نثر حالات، ښه والی، بد والی او نورې مرتبې بيانوي.

**اديب:** اديب په لغت کې پوه، زيرک رابلونکي اود شي د اندازې ساتونکي ته وايي. په اصطلاح کې اديب هغه څوک دی چې په ادبي علومو کې د پوهې څښتن وي او د دغو علومو په اصولو برابر نظم او نثر وويلی او وليکلی شي.

**ادبي علوم:** هغه علوم چې د ژبې خدمت کوي او د هغو په واسطه د نثر او نظم په فن کې مهارت پيدا کېږي ادبي يا ژبني علوم دي. د ادب پوهانو دا وروسته علمونه د ادب علمونه بللي دي لکه: لغت، صرف، اشتقاق، نحوه، معاني، بيان، عروض، قافيه، دا اته يې اصل دي او خط، انشاء، د شعر فن، او داسې نور يې فروع بلل کېږي.

ادبيات: هغه نظم او نثر چې د ادبي علومو په اصولو برابر او خوندور وي هغوته ادبيات ويل کېږي. يعنې هغه متلونه، خواږه اشعار، لوړ بيانونه، غوره ويناوې چې په هره زمانه کې يې د ژبې پوهان او اديبان وايي او يا يې ليکي د ژبې ادبيات

بلل کېږي.
څېړونکی سید محی الدین هاشمي د ادب د کلمې په اړه داسې وايي:
ادب عربي کلمه ده چې ځینې فرهنګونو یې لغوي معنا: روزنه، ښه معاشرت، ښه کړه وړه، اخلاق او لمانځنه راخیستې ده او په ځینو کې یې معنا: پوهه، فرهنګ، هنر او ځیرکي راغلې ده. پخوا به دا کلمه په ټولیزه توګه اصطلاحاً د لغاتو، صرف، نحوې، معاني، بیان، بدیع، عروض، قافیه، د خط اصول، د قرائت اصول، انشاء، او تاریخ په علومو اطلاق کېدله.
کله کله په ټولیز مفهوم د یوې ژبې ټولو لیکلو آثارو ته هم ادبیات ویل شوي دي، خو اوس یې دغه لفظي او اصطلاحي تعبیر( وینا) بدلون موندلی.
میتهو ارنلډ ادب ته د ژوند تنقید او ترجمان وايي. د نوموړي په اند رینښتنی ادب هماغه دی چې د ادیب د زړه او دماغ زېږنده وي.
ځینې وايي: چې په یوناني ژبه کې ادیب هغه چاته ویل کېده، چې خبرې به یې خوږې وې او د ښه غږ څښتن به و.
د ادب یا ادبیاتو څرنګوالی (ماهیت): د ادبي مطالعاتو په لړ کې تل دا پوښتنې رامنځ ته کېږي چې څه شی ادبیات دي او څه شی په ادبیاتو کې نه شو شمېرلی؟
دا پوښتنې په ښکاره ډول ډېرې ساده او سطحي برېښي، خو ځوابونه یې بیا هومره اسانه نه دي. د لویدیځ یو ادب پوه اډوان ګرینلا ټول چاپ شوي او لیکلي آثار په ادبیاتو کې شمېري. که موږ د نوموړي دا پورتنی خبره ومنو او د یوې ژبې ټول چاپ شوي او لیکلي آثار ادبیات وګڼو نو بیا نور ټولنیز او ساینسي علوم لکه: فزیک، کیمیا، بیولوژي، هندسه، تاریخ، جغرافیه، او .....څنګه د ځانګړو علومو او فنونو په توګه منلی شو. په همدې بنسټ ویلی شو چې د یوې ژبې ټول آثار ادبیات نه دي.
ادب پوهانو د منځپانګې له مخې ادبیات پر دوو سترو برخو ویشلي دي:
۱– تخیلقي(پنځوونکي) یا هنري ادبیات: تخلیقي یا هنري ادبیاتوته اصلي او رینښتیني ادبیات وايي، چې په هغو کې: شعر، لنډه کیسه، ډرامه، ناول، رومان، ادبي ټوټې، تکل، طنز، ادبي سفرنامه، ادبي راپورتاژ او نور شامل دي. او په څیړنیزو ادبیاتو کې د یو لړ علمي ټولنیزو اصولو او معیارونو له مخې د ادبیاتو د منشاء، څرنګوالي، د ارزښت په اړه څېړنې شاملې دي.

د ادبیاتو موخه او غرض:
له ډېرې پخوا زمانې راهیسې د ادب پوهانو له خوا د ادب په هکله دوه نظرونه چې ډېر عام دي. ۱– ادب د ادب لپاره ۲– ادب د ژوند لپاره
_ ادب د ادب لپاره د نظر پلویان ادب له یوې مخې له خپل ټولنیزې موخې او ارزښت څخه رابیلوي او په دې باور دي، چې ادب یوازې او یوازې انسان ته روحي خوښي خوند او تسکین وربښي او نور هېڅ نه شي کولای. دوی د ادب په منځپانګې او مضمون کې د نغښتي ټولنیز اخلاقي، روزنیز، او هڅوونکي ځواک له اغېزو او ارزښت نه سترګې پټوي.
د دویمې نظریې پلویان(ادب د ژوند لپاره) بیا په دې باور دي چې ادب د ښکلاییز، روحي لذت او تسکین ترڅنګ د ټولنیزې او اخلاقي روزنې، سمون، د اذهانو د روښانولو او لارښوونې دنده هم پر غاړه لري.
که د هر قوم، ملت او ژبې ادبي تاریخ ته ځیر شو، نو دا به راته څرګنده شي چې د هغو دردمنو او با احساسو ادیبانو په یوه یا بله بڼه د خپلې عقیدې او فکر د تبلیغ یا خپراوي، د قوم او ملت د ذهني ویښتابه، معنوي لوړتیا او سمون لپاره

ادب د یوې وسیلې په توګه کارولی دی. په دې ترتیب یې په خلکو کې د کار، عمل، سمون او بدلون ولوله راولاړه کړې ده. د ساري په توګه: که د پښتو په ادبي تاریخونو کې د خوشحال خان بابا، عبدالرحمٰن بابا او نورو نومیالیو لیکوالو او ادیبانو آثار ولولو، نو راته جوته به شي چې هغوي څنګه ادب د دیني، مذهبي عقایدو او د ټولنیزو، اخلاقي خیر ښیګڼې، د قومي او ملي احساس د بیدارۍ او تبلیغ لپاره یوه ډېره اغېزمنه وسیله ګرځولې او خپله ټولنیزه موخه یې سرته رسولې ده.

د ادب د جوړښت بنسټیز توکي:

وتلي انګریز کره کتونکی هیډېسن د ادب د جوړښت لپاره څلور بنسټیز توکي ښودلي دي:

۱– عقلي او ذهني ۲– جذباتي او عاطفي ۳– تخیلي ۴– تخنیکي او فني.

د ادب موضوعات: ادب څېړونکو په ټولنیز ډول د ادب موضوعات په پنځه برخو ویشلي دي:

۱– ذاتي یا خپلې تجربې: چې د ادیب په ځاني ژوند پورې اړه لري.

۲– انساني تجربې: هغه تجربې چې د ټول بشر یا انساني نوعې تجربو پورې اړوند وي.

۳– ټولنیزې تجربې: چې د ټولنې په ګډواو ټولیزو تجربو پورې اړه لري.

۴– په مادي نړۍ پورې اړوندې تجربې: هغه چې طبیعت او په بهرنۍ نړۍ پورې اړه لري.

۵– په ادب پورې اړونده تجربې: چې په هغو کې ادیب یوازې د خپل فن او هنر بشپړ تابه ته ګوري یا د خپل هنر پراختیا او لوړتیا په پام کې نیسي.

ادبي ژبه: د هر ادبي اثر ژبه باید له ادبي ښیګڼو او ځانګړنو څخه برخمنه وي او د اثر په ټولو برخو کې د لفظ او معنا ترمنځ اړیکې او فکري تسلسل شتون ولري.

غوره او معیاري ادب: ښه او معیاري ادب هماغه دی چې په کې د جذباتو او احساساتو ریښتنې ترجماني شوې وي. په هر ادب کې چې دغه ځانګړنه شتون ولري هغه لوړ او معیاري ادب دی.

یا په لنډه وینا ادیب هنر مند دی او ادبي مطالعه کوونکی د لوستونکي او زده کوونکي په ډله کې شمېرل کېږي.

**اخځلیکونه:**

ښاغلی ښوونکی کولای شي چې د دې لوست د زیاتو معلوماتو لپاره لاندې کتابونه وګوري.

۲–الفت، ګل پاچا، د الفت نثري کلیات، دانش خپرندویه ټولنه.

۳– رښتین، صدیق الله، د پښتو ادب تاریخ، پښتو ټولنه.

۴– رښتین، پوهاند صدیق الله، د پښتو نثر هنداره.

۵– هېوادمل، سرمحقق زلمی، د پښتو ادبیاتو تاریخ (لرغوني او منځنۍ دوره)،دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۷۹هـــ ش کال

٦– زېور، پوهاند ډاکټر زېورالدین، د پښتو ادبیاتو لرغوني دوره.

۷– روهي، کاندید اکاډیمېسن محمد صدیق، د پښتو ادبیاتو تاریخ.

## پنځم لوست

**د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه**

| د مطالبو سر لیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | خوشحال خان خټک | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د خوشحال خان خټک او د هغه د علمي شخصیت په اړه به معلومات تر لاسه کړي او متن به روان ولوستلای شي.<br>– د خوشحال خان بابا د علمي او ادبي آثارو نومونه به وپېژني.<br>– د خوشحال خان بابا د شعر په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>– د متن لنډیز به په خپله ژبه وویلای شي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به حل کړای شي.<br>– د خوشحال خان خټک د لوست پېچلي لغتونه به معنا او په جملو کې وکاروي.<br>– دخوشحال خان خټک د علمي کارونو په اړه به یوه مقاله ولیکلای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، د کتاب لوستل، ډله ییز کار، په یوازې توګه کار، لیکل، لوستل او اورېدل. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د خوشحال خان خټک د مشهورو آثارود نومونو لیکلي کارتونه، کتاب، تخته تباشیر او کتابچه. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام سترې مه شي، د حال او احوال پوښتنه، د تېر لوست څخه پوښتنې او بیا په نوي لوست پیل کول. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ. تاسې کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وپوښتئ:<br>– خوشحال خان خټک پښتو ادب ته کوم علمي او ادبي خدمتونه کړي دي؟<br>– ولې خوشحال خان خټک د هند د مغلي امپراتورۍ پر وړاندې جنګېده؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې د لوست ټاکلې برخه په زده کوونکو پــه پټه خوله ولولي او په لوستلو کې دې له زده کوونکو سره پوره مرسته وکړي. | – زده کوونکي نوی لوست د کتاب له مخې په پټــه خولــه لولي. که په کومه کلمه نه پوهیږي، له ښوونکي څخه مرسته غواړي. | ۳۵ دقیقې |

| | |
|---|---|
| - ښوونکی دې نوی لوست په مناسب لوړ غږ زده کوونکو ته ولولي او ستونزمنې کلمې دې د تختې پر مخ ولیکي. | - زده کوونکي خپلو کتابونو ته گوري او د ښوونکي لوستلو ته په ځیر سره غوږ نیسي. |
| - ښوونکی دې د ستونزمنو کلمو معنا وې وپوښتي او د زده کوونکو ځوابونه دې په غور واوري. ناسمو ځوابونو ته دې بیا سم ځواب ووایي او د تختې پر مخ دې ولیکي. | -زده کوونکي د لغتونو په معنا ویلو کې برخه اخلي او د کومو لغتونو په معنا چې پوه شوي نه دي هغه په خپلو کتابچو کې لیکي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو وویشي هرې ډلې ته دآثارو لیکلي کارتونه ورکړي چې هغوی ورته ځو مناسبې جملې جوړې کړي. بیا دې د هرې ډلې یو استازی خپلې جوړې شوې جملې نورو ته ولولي. | - زده کوونکي د خپلو ډلو په فعالیت کې ونډه اخلي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو څخه په یوازې توگه د لوست د لومړي فعالیت پوښتنې وکړي او د زده کوونکو شفاهي ځوابونه دې په ځیر سره واوري. سم ځواب ورکوونکو دې په ښو الفاظو وستایي او د ناسم ځواب ورکوونکي ته دې د پوښتنې سم ځواب ووایي او په مفهوم باندې دې وپوهوي. | - زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوستل شوي شعر په اصلي مفهوم خبرې وکړي. | - ځو زده کوونکي په وار سره د شعر په اصلي مفهوم خبرې کوي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکوڅخه وغواړي چې د خوشحال خان ختک د کورنۍ د ځو تنو شاعرانو نومونه واخلي. | - زده کوونکي د ځو شاعرانو نومونه اخلي چې د خوشحال خان ختک په کورنۍ پورې اړه لري. |
| - ښوونکی دې بیا شعر ولولي او د شعر په اصلي موخه باندې دې رڼا واچوي او د متن اصلي مفهوم دې په ځو لنډو جملو کې بیان کړي. | - زده کوونکي د شعر په اصلي موخه ځانونه پوهوي. |
| - ښوونکی دې لوستل شوی متن په شفاهي پوښتنو سره ارزیابي کړي. | - زده کوونکي د ارزونې پوښتنوته ځوابونه وایي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو دلوست په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریم ساعت کې دلوست د پای کو رنۍ دنده وسپاري او په بله ورځ دې وگوري. | - زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع په خپلو کتابچو کې لیکي او په کورکې یې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

اکوړه: د کوزې پښتونخوا یوه تاریخي او مشهوره سیمه ده چې ختک په کې اوسیږي. د پېښور په سویل ختیځ کې پرته

ده.
دهند د مغلي پاچا جلال الدين اکبر له خوا د خټکو د مشر د خوشحال خان خټک ستر نيکه ملک اکوړي ته د جاگير په توگه ورکړل شوه. په دې سيمه کې چې کومه لويه لاره پرته وه په هغو باندې د سوداگريزو مالونو او څارويو د تگ راتگ ماليات او محصول ټولول هم دوی ته وسپارل شول او سربيره پر دې د مالگو لوی لوی کانونه هم د دې سيمې لويه شتمني وه چې خټکو به د دغو لاسته راوړنو پر وړاندې مغلي دولت ته د اړتيا په وخت کې اجير عسکر ورکول چې دا کار له ملک اکوړي څخه پيل بيا د ده زوی يحيٰی خان ورپسې شهباز خان او تر ده وروسته خوشحال خان او د ده زامنو ته د يوه منصب په توگه ورکړ شوی و.

لغتونه:
جزم – قطعي عزم او هوډ
رزم – جنگ او جگړه
بزم – غونډه، مجلس
يرغل – بريد
فرهنگيالی – فرهنگ پالونکی – فرهنگ وال

اضافي معلومات:

## خوشحال خان خټک

خوشحال خان بابا د پښتو ژبې تکړه شاعر، ستر ليکوال، پيژندل شوی ملي مبارز د پښتو ژبې د حماسي ادبي مکتب بنسټ ايښودونکی او ملي لارښود په ۱۰۲۲ هـ کال چې د (۱۶۱۳) زېږديز کال سره سمون خوري د خټکو د اکوړې د سيمې د لنډې سيند په ښي خوا د پېښور ختيځې خوا ته له پېښور ښار څخه پنځه ديرش ميله لرې په سرای نومي ځای کې زېږېدلی دی. په ۱۱۰۰ هـ (۱۶۸۹ ز) کال مړ او خاورو ته سپارلی شوی دی.
خوشحال خان خټک (۷۸) کاله ژوند کړی دی چې په دغو کلونو کې يې (۶۵) کاله په مبارزه، شاعرۍ او ليکوالۍ کې تېر کړي دي. خوشحال خان بابا د نورو شاعرانو او ليکوالانو په نسبت د پښتو ژبې د ادبياتو د ودې، پراختيا او لوړتيا په لار کې ډېر خدمتونه کړي چې د دغه ټکي د ثبوت لپاره د مېجر راورټي په وينا د ده دوه سوه پنځوس ليکلي کتابونه په خپله د ده د کار ښکارندوی دي. د ده له دې شمېر کتابونو څخه يوازې د ځينو کتابونو نومونه اخيستلی شو چې تر اوسه لاس ته راغلي دي.
۱– ديوان "کليات": دغه اثر څلوېښت زره بيتونه لري او د خوشحال خټک يوستر او با ارزښته شعري کتاب دی.
۲– باز نامه: په دغه کتاب کې د باز پيژندنې، علاج او روزنې په هکله معلومات موجود دي. د غه کتاب په نظم ليکل شوی دی.
۳– صحت البدن (طب نامه): د رو غتيا يې چارو په لړ کې گټورکتاب دی.
۴– هدايه: د اسلام د مشهور کتاب عربي فقهې پښتو ژباړه ده.
۵– آيينه: داهم د فقې کتاب دی چې په پښتو ژبه ژباړل شوی او ديني لار ښوونې پکی بيان شوې دي.
۶– فضل نامه: د وړوکي بحر مثنوي ده چې مذهبي مسئلې څېړي. يو ديني کتاب دی.
۷– سوات نامه: د سوات د سيمې د جغرافيا يې حالاتو په هکله ليکلی شوی اثر دی. خو شحال خان خټک د خپل

تحریک، جدو جهد بیان  هم پکې کړی. په تاریخی حالاتو او پیښو باندې علمي او اد بي تنقید هم لري. د غه کتاب څه د پاسه د (څلور سوه شعرونه) په ورو کي بحر کې مثنوي ده.
۸– فرخنامه: د تورې او قلم بحث پکې بیان شوی دی.
۹– دستار نامه: د خوشحال خان خټک یو ارزښتناک نثري اثر دی. په ۱۰۷٦ ه ق کال کې د هند د رنتبور په زندان کې یې لیکی دی.
۱۰– بیاض: دغه کتاب په نثرلیکل شوی دی او خوشحال خټک خپل حالات او د خپلی کورنۍ اوولس د ژوند بیان پکی کړی دی.
۱۱– ځنځیرۍ: دغه اثر هم د خوشحال خان خټک او په یو خاص لیک دود لیکل شوی دی.
۱۲– ریاض الحقیقت: خوشحال خان خټک په دغه کتاب کې د پر هیزګارۍ بیان کوي.
۱۳–تفسیر سیرت یوسف: دا کتاب د حضرت یوسف (ع) په هکله معلومات وړاندې کوي.
۱۴– د پښتنو تاریخ (ورک دی)
د خوشحال خان بابا په شعرونو کې هر ډول شعرونه شته لکه غزلیات، قصیدې (بوللې)، قطعات، مخمس، مســـدس، ترجیع بند، ترکیب بند او نور.
خو د ده د اشعارو غوره برخه د هیومانېټیک (انسان پالنې، ملي حماسې او روزنیز) افکارو برخه له هر څه زیاته ده.

وګړي واړه کارونه خپل کا مردان هغه دي چې کار د بل کا
ځو ک چې ارام ګټي د نېکو نام ګټي د خوړو زړونو دارو به تل کا

خوشحال خان بابا د ملي ټولنوال پېژندل شوي نړیوال شخصیت په توګه د ښوونې او روزنې په اړه پراخه نړیواله نظریه او فکر لري، لکه چې وایي:

تربیت چې د باغوان د لاسه مومي
په هر ځای باندې ګلونه د بوستان
هر استاد سره چې کښیني یو څو ورځې
د هغه هنر پر ده کې نمایان شي

د پورته شعر څخه څرګندېږي چې خوشحال خان خټک څو سوه کاله پخوا لا په دې باور و چې باید انسان په زده کړه لاس پورې کړي، ځکه چې د ده په فکر انسان د زده کړې او فکر کولو ستر توان لري. څرنګه چې ښه او بد د پوهې له مخې جوتیږي، نو ځکه انسان ته زده کړه له هر څه ارزښتمنه بولي.

خوشحال خان خټک په ژوند کې ډېر علمي کتابونه په شعر او نثر لیکلي او ژباړلي دي. د نړۍ نامتو پوهانو د ده د کتابونو شمېر (۲۵۰) ښودلي دي. د خوشحال خان خټک په څېړنو، ژباړنو او لیکنو کې د انسان روزنه، بشر پالنه، خپلواکي، د دښمن پر وړاندې مبارزه، ملي یووالی راتلونکو نسلونو ته د ژوند درسونه ورکوي.

**د خوشحال خان خټک د مجادلې او مبارزې لار:**

۱_ د هر ډول ښکېلاک او زبېښناک پر وړاندې یې توره له  قلم سره یو ځای لازمه ګڼلې ده.
۲_ خوشحال خان خټک هنر د ژوند لپاره غواړي، نو ځکه ده په خپل هنري ادب کې پښتنو ته د مغلي دولت او

امپراتورۍ پر وړاندې د مېړانې درس ورکړی دی.
۳- د منځنۍ آسیا په زړه کې هغه شاعر دی چې نه یوازې خپل قوم، بلکې د سیمې هېوادونو او د نړۍ بشردوست ولسونه ورباندې ویاړي اود منځنۍ آسیا په ادبي تاریخ کې يې د پښتون ولس د ژبې او ادب بیرغ پورته کړی دی.
۴- د خوشحال خان خټک په اړه ختیځ پېژندونکي او نور پوهان وايي چې د پښتو ژبې په ادب کې داسې لارښوونکی و لکه: د سترو انسان پالونکو په واسطه چې په اروپا کې د انسان دوستۍ مفکوره منځ ته راغله او خپره شوه. ده دغه فکر د آسیا په زړه کې افغان ملت ته ورکړ. خپلو خلکو ته يې داسې ملي روحیه ورکړه چې د خپلواکۍ او د هېواد د دښمن پر وړاندې يې په ملي مبارزو لاس پورې کړ. د روښاني نهضت د مبارزو تاوده سنګرونه لا ساړه شوي نه وو چې د پښتنو د ننګیالي هېواد په غیرتمنه غېږه کې د روښان په شان یو بل ستر ننګیالی او رښتنی بچی خوشحال خان خټک د پښتنو د ګڼو پرګنو د ملي ستر مبارز او د پښتنو د مشر په توګه د ځواکمن ګورګاني نظام پر وړاندې په پوره مېړانې او زړورتیا سره ودرېد.

**د خوشحال خان بابا د ژوند بېلا بېل اړخونه:**

د خوشحال خان خټک له ټولو هلو ځلو څخه موخه خلک او ولسونو راټولول د پردیو او ظالمانو د ظلم او زیاتي پر وړاندې درېدل او د دوی له هر ډول کړاوونو څخه ژغورل وو ، د همدغو لوړو موخو لپاره يې د قوم مشرتوب د خلکو د خدمت لپاره ومانه. خوشحال خان خټک د خلکو د خدمت په لار کې د خپل هر بریالیتوب په پایله کې خپل کار هنر بللی دی لکه چې وايي:

چې هنر د سربازۍ کـــــــاندي د تورو
زه خوشحال خټک تر هسې هنر ځار شم

په همدې شان خوشحال خان خټک د توریالیتوب د عقیدې د لرلو له مخې د زمان او مکان تشخیص داسې کړی دی. لکه چې وايي:

کل ګټنه ده د تورې که کابل دی که کشمیر
مېړني دي چې یادیـــږي په ســـندرو یا په ویر

د تورې او قلم د څښتن خوشحال خان بابا یوازینۍ موخه په ژوند کې د پښتون ولس یووالی او خپلواک ژوند کول و.
خوشحال خان خټک د خپل وخت د سترو مبارزینو، لیکوالانو، پوهانو او شاعرانو په لړ کې سربېره د خپلې ریالیستي، رزمي او ملي مفکورې یوازینۍ موخه دا وه چې خپل ولس په سیاسي برخو کې تر هغه پورې ورسوي چې مشر، کشر، ښځه او ټول ولس د خپلې خاورې دوست او دښمن وپېژني او د دښمنانو دسیسې او پلانونه په ډېرې هوښیارۍ سره ورشنډې کړي. همدا لامل دی چې د ده په افکارو کې ریالیستي او د ښوونې او روزنې مفکوره له ورایه ښکاري لکه چې وايي:

مـــــــــرد هغه چې همتناک برکتناک وي
د عالمه سره خوږ په زیست او ژواک وي

لکه څنګه چې خوشحال خان خټک د خپل قوم او ولس خپلواکي په ژوند کې له هر څه مهمه ګڼي، نو په دغه برخه کې يې خپله ملي مفکوره د ملي حماسې د جوړولو په رڼا کې داسې ښکاره کړې ده:

د افـــــغان په ننگ مې وتړله توره
ننگيالى د زمانې خوشحال خټک يم

د پښتو ژبې خدمت د څرگندونې په اړه يې داسې ويلي دي:

ما خوشحال چې په پښتو شعر بيان کړ
د پښتو ژبه به اوس په اب وتاب شي.

## خټک څوک وو؟

خټک د پښتنو قوم د سترو کورنيو څخه هغه کورنۍ ده چې په لرغونو وختونو کې د سليمان غره په شمال ختيځه سيمه کې چې شوال نومېده استوگنه کوله او دغه ځاى د خټکو لرغونې مېنه وه.

د خټکو د نيکه نوم لقمان و، او ده دوه وروڼه درلودل چې يو يې عثمان او بل يې اتمان نومېده. دغو وروڼو خپلې کورنۍ لقمان ته د ستر خټک د مشرتوب غږ کړى او ټولو لقمان او خټک بابا (د خټکو د نيکه په نامه) ياد کړ چې تر ننه پورې د خټکو نيکه د (خټک)په نامه يادوي. د (خټکو) پرگنې د سليمان غره په لړيو کې اوسېدلې کله چې ډېر شول نو هرې خوا ته ولاړل. د لرې پښتونخوا د پېښور د خيبر ختيځې خوا ته په ۳۵ کيلو مترۍ کې د لنډي سيند غاړې ته ور ورسېدل چې د دغو خلکو مشر سړى په هغه ځاى کې محمد معروف ملک اکو نومېده. ملک اکو د خپلې کورنۍ قوم او ټبر سره د لنډي سيند په غاړه ژوند غوره کړ.

د پښتنو په ملي دود کې مشر ته سربيره پر بابا، نيکه، اکا، يا اکو هم وايي، لکه څنگه چې د پښتو ژبې دادبياتو په ولسي ادب کې جرگو او مرکو ته اکاړه او يا اکوړه وايي او ملک اکو به د جرگو او مرکو مشري کوله، نو له همدې امله يې دى د ملک اکوړ (اکوړي) په نامه او کوم ځاى کې چې دوى به جرگې او مرکې کولې د اکوړه د کلا په نامه ونوماوه.

له ملک اکوړي څخه وروسته دغه ملکي او مشري بيا د ده زوى يحيٰى خان او تر هغه وروسته شهباز خان ته ورسېده چې په ۱۰۲۲هــ ل کال په دغه کورنۍ کې د شهباز خان کره يو ماشوم نرى ته راغى چې هغه لوى خوشحال خان خټک و.

**اخځليکونه:**

ښاغلى ښوونکى کولاى شي چې د دې لوست د لا زياتو معلوماتو لپاره له لاندې اخځليکونو څخه گټه واخلي:


۱– کارگر, سيد محمود, د پښتو ادبياتو تاريخ د يوولسم ټولگي لپاره, د چاپ کال ۱۳٦۸ لمريز.
۲– مومند، دوست محمد کامل، خوشحال خټک، پېښور چاپ
۳– هېوادمل، زلمى، ننگيالى د زمانې، دافغانستان کلتوري ودې ټولنه ، ۱۳۸۰هــ ش کال
۴– ننگيالى پښتون د لومړني سيمينار د مقالو ټولگه.
۵– توريالى پښتون، د دويم سيمينار د مقالو ټولگه، پښتو ټولنه ۱۳۵۰هــ ش کال
٦– پوهنوال، شاه ولي خان، خوشحال پېژندنه.

## شپږم لوست

### د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | پښتو نحوه یا جمله پوهنه | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>–د نحوې په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>– نحوه به تعریف او په دې به وپوهیږي چې نحوه له څه شي څخه بحث کوي.<br>– د جملې د جوړښت په پوهېدو سره به هغه له نورو ترکیبونو څخه توپیر کړي.<br>–د نحوې د ډولونو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– د جملو د ډولونو په برخه کې به بېلګې ولیکلی شي.<br>– د متن فعالیتونه به په سمه او بشپړه توګه ترسره کړای شي.<br>– د نحوې د اصولو مطابق به په خپله جملې ولیکلای شي او په ارزښت به يې خبرې وکړای شي. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې |
| | پوښتنه او ځواب، یو کسیزکار، ډله ییز کار او لوستل. | د تدریس لارې |
| | کتاب، کتابچه، قلم، تخته، تخته پاک، د امکان په صورت کې د ګرامر کتابونه، د ژبپوهنې یعني د فونو لوژي(غږ پوهنه)مورفولوژي(لغت پوهنه) او سنټکس نحوه یا (جمله پوهنه) بیلا بېل اخځلیکونه. | د تدریس وسیلې او مرستندوې توکي |
| | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه. | د ارزولو لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | سلام ورکول، سترې مه شي، د حال او احوال پوښتنه، له تېر لوست څخه د ارزیابۍ لپاره پوښتنې او بیا په نوي لوست پیل. | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ او هم کولای شئ چې داسې پوښتنې چې زده کوونکي لوست ته وهڅولای شي وکړئ.<br>– تاسو د نحوې کلمه اورېدلې ده؟<br>– څه فکر کوئ که د جملو جوړښت سم نه وي په خبرو کې به څه ستونزه رامنځته شي؟<br>– آیا د یوه مطلب او خبرې د سمې افادې لپاره جمله ارزښت لري؟ | د انګېزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکي فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| | ـ زده کوونکي نوی لوست په پټه خوله له ځان سره لــولي او د لوست په مفهوم ځان پوهوي. | ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چـې د څو شېبو لپاره نوی لوست (نحوه یا جمله) په چوپتیــا لــه ځان سره ولولي. |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی دې په څو زده کوونکو باندې نوی لوست پــه خپل وار سره په لوړ غږ ولولي. کوښښ دې وکړي چــې کمزورو زده کوونکو ته په لوستلو کې ډېره ونډه ورکــړل شي. | –زده کوونکي په خپل وار سره د نوي لوست یوه یوه برخه لولي. |
| – ښوونکی دې متن په خپله ولولي او د نحوې یا جملې په اړه دې رڼا واچوي. | – زده کوونکي متن ته په ځیر گوري او غوږ ورته نیسي. د نحوې یا جملې په اړه لنډ معلومات تر لاسه کوي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه دا لانــدې پوښــتنې وکړي او د هغوی ځوابونو ته دې پام وکړي د اړتیــا پــه صورت کې دې ورسره مرسته وکړي.<br>۱ـ ژبپوهنه کومې برخې لري؟<br>۲ـ جمله څه ته وایي؟<br>۳ـ جمله له کومو برخو څخه جوړه شوې ده؟ | – زده کوونکي پوښتنو ته مناسب ځوابونه وایي او د اړتیا په صورت کې له ښوونکي څخه مرسته غواړي. |
| – ښوونکی دې په ټولگي کې له یوه یــوه زده کــوونکي څخه په خپل وار سره وغواړي چې د ټولگي مخې ته راشي او د جملې په اړه خبرې وکړي. | – زده کوونکي په خپل وار سره د ټولگي مخې ته راځــي چې د جملې په اړه خبرې وکړي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چــې د جملو د بنسټیزو برخو (مبتدا او خبر) پــه اړه معلومــات ترلاسه کړي او بیا دې ښېلگې د تختې پر مخ ولیکي. | – زده کوونکي د جملو د بنسټیزو برخو په اړه معلومــات تر لاسه کوي او ښېلگې یې د تختی پرمخ لیکي. |
| – ښوونکی دې د لوستل شوي لوست ارزونه د څو پوښتنو په کولو سره تر سره کړي. | – زده کوونکي د لوستل شوي لوست په اړه د ښوونکي پو ښتنو ته مناسب ځوابونه وایي. |
| – کورنۍ دنده:<br>ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو په لــومړي او دویــم درسي ساعت کې په خپله خو ښه کورنۍ دنده وسپاري او په دریم درسي ساعت کې دې دلوست دپای کورنۍ دنده ورکړي. | – زده کوونکي د ښوونکي له لار ښوونې سره سم کــورنۍ دنده لیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې یې له ځان سره ټولگي ته راوړي. |

**اضافي معلومات:**

**نحوه یا جمله پوهنه(syntax)**

نحوه عربي کلمه ده. لغوي معنایې په فرهنگونو کې: لاره، طریقه، روش، طرز، او دود راغلې ده، خو په اصطلاح کې د گرامر هغې برخې ته وایي چې د یوې ژبې د جملو، عبارتونو، فقرو، ترکیبونو له جوړښت، ترتیب او تنظیم څخه بحث کوي. او یا دا چې: نحوه هغه پوهه ده چې د جملو، فقرو، عبارتونو، ترکیبونو له جوړښتونو او قاعدو څخه بحث کوي. د جملې د توکو قاعدې هم پکې بیانیږي.

په نحوي چاپیریال کې نحوي ترکیبونه او جملې د معنا او جوړښت له مخې په پام کې نیول کیږي. همدارنگه پکې د نحوي واحد یعنې تکمیم په جوړښت او تشکیل، د مورفیمونو ترکیب، تنظیم، بدلون او گرامري اړیکو باندې بحث او

خبرې کېږي. د جملې د اجزاوو يا توکو قاعدې هم په کې بيانيږي.

**د نحوې موضوع:**

ژبه د نښو نښانو يو سيستم دی. غږيزې(صوتي) نښې، لفظي نښې جوړوي. په دې مفهوم چې د غږيزو نښو له ترکيب څخه لفظي نښې رامنځ ته کېږي. له همدغو لفظي نښو نښانو يا کلمو څخه په يوازې او يا يو له بلې سره د يو ځای کېدو په پايله کې د ژبې نحوي نښې نښانې راڅرگنديږي چې هغو ته گرامري بڼه يا شکل ويل کېږي او له هغو څخه وينا او خبرې جوړيږي. همدغه د وينا د توکونو خپل منځي اړيکې او جوړښت په مجموع کې د نحوې موضوع جوړوي.

په عمومي ډول په نحوي سيستم کې د تگميم تجزيې (د نحوې واحد) او ترکيب او د هغو ترتيب او تنظيم ته نحوه يا سنټکس ويل کېږي.

يايه بل عبارت: د نحوي واحدونو او د هغو د اړوندو توکونو تجزيه، ترکيب، تنظيم، او څرنگوالي ته سنټکس (syntax) يا نحوه وايي.

تگميم يا نحوي واحد:

د يوې ژبې تر ټولو کوچنی نحوي واحد چې د وېشنې وړ نه وي تگميم يا نحوي واحد بلل کېږي.

کله چې يو گرامري شکل د يو لوی شکل برخه نه وي بيا نو خپلواک گرامري شکل دی چې مورِ يې تگميم يا نحوي واحد نوموو چې جمله يې محتوا ده.

د بېلگې په توگه: کله چې وايو دغه څوک ده؟ که د همدې پوښتنيزې جملې په ځواب کې وويل شي (نجلۍ) نو بشپړ مطلب رسيږي. په دغه حالت کې (نجلۍ) يو تگميم دی. ځکه چې يو خپلواک گرامري شکل دی او د خپل ځان نه د کوم بل لوی شکل برخه نه ده. کله که له همدغې "نجلۍ" سره د "هوښياره" کلمه ورزياته شي او د يو گرامري شکل په توگه (هوښياره نجلۍ) په ترکيب کې وليدل شي، نو بيا دلته"نجلۍ" د خپل ځان د لوی جوړښت د يوې برخې په توگه کارول شوې او مقيده ده، نو ځکه يې په دغه صورت کې تگميم نشو بللی. د يادونې وړ ده چې (هوښياره نجلۍ) په توصيفي حالت کې يو تگميم دی. (هوښياره نجلۍ راغله) په گرامري جوړښت کې د خپل ځان د لوی شکل يوه لويه برخه ده، نو ځکه تگميم نه دی.

تگميم يا نحوي واحد په عمومي توگه په يوې ژبې کې دوې برخې رانغاړي.

فقره او جمله

د ژبې په گرامري شکلونو کې ترکيبونه هم شته چې له دوو داسې کلمو څخه جوړ وي چې نحوي اړيکې لري، خو بشپړه معنا نه وړاندې کوي. د مخه تر دې چې د فقرې او جملې په اړه څه ووايو د بحث لړۍ د دغو ترکيبونو د پېژندنې او جوړښت د څرگندوالي په اړه لنډو او ځغلندو څرگندونوته غځوو.

ترکيب (غونډ – عبارت)

ترکيب د دوو يا زياتو (خپلواکو او ناخپلواکو) کلمو او مورفيمونو له يو ځای کېدو څخه عبارت دی چې اجزايي (توکي) يې يو له بله سره گرامري اړيکې ولري. يا په بله وينا د دوو يا زياتو خپلواکو او نا خپلواکو کلمو ټولگه ده چې برخې يې يو له بله سره گرامري اړيکې لري.

ترکيبونه که له يوې خوا د جملو په جوړونه او رغونه کې ارزښتمنه ونډه لري، نو له بلې خوا په ځانگړې توگه د نحوي واحدونو دنده هم سرته رسولی شي.

د ترکيب ځانگړنې:

پوهندوی ډاکټرې زرغونې (ژبور). په خپل اثر "پښتو نحوه" کې د ترکیب دا لاندې ځانګړنې ښودلې دي.
۱– ترکیب له دوو یا زیاتو خپلواکو او ناخپلواکو کلمو څخه جوړیږي.
۲– په ترکیب کې یوه کلمه د بلې اړونده تابع ګرځي.
۳– په ترکیب کې د کلمو تر منځ نحوي اړیکه ټینګیږي.
۴– ترکیب نسبت کلمې ته پراخ او مرکب مفهوم څرګندوي.
۵– د جملې او ترکیب تر منځ توپیر او ښلوالی شته.
د جملې او ترکیب ترمنځ توپیر:
د جملې او ترکیب ترمنځ جوت توپیر شته. د یوې جملې مبتدا او خبر هر یو له اسمي او فعلي ترکیبونو څخه جوړیږي.
د بېلګې په ډول په یوه بشپړه جمله کې مبتدا او خبر او د هغوی متعلقات خپل ځای لري، خو ترکیب له دې اړخه نیمګړي پاتې وي.
د ترکیب ډولونه:
ترکیبونه په لومړي سر کې په دوو سترو ډلو وېشل کېږي:
الف: اسمي ترکیبونه
ب: فعلي ترکیبونه
**اسمي ترکیبونه:**
هغه ترکیبونه دي چې د ترکیب اصلي او بنسټیزه برخه یې نوم وي او دغه ترکیبونه په جمله کې د مبتدا (مسند الیه) او په اسمي جمله کې د خبر (مسند) په برخه کې راځي.
اسمي ترکیبونه دا لاندې ډولونه لري:
**۱ـ اضافي ترکیبونه:**
دا هغه ترکیبونه دي چې د یوه نوم نسبت بل نوم یا ضمیر (نومځري) ته شوی وي. د پښتو ژبې په اضافي ترکیبونو کې معمولاً یو نوم مضاف الیه او بل نوم د مضاف په توګه وي. مضاف له مضاف الیه څخه وروسته راځي. جوړښت یې په دې ډول کېږي: د اضافت توری (د) + نوم + نوم (د + مضاف الیه + مضاف) لکه: د کابل ښار
اضافي ترکیب د معنا له مخې د دې لاندې موخو لپاره راځي:
– د ملکیت یا نسبت او نژدیوالي د معنا د څرګندولو لپاره: د ښوونځي نجونې.
– د اختصار (لنډوالي) په مفهوم: د کندوز خټکې
– د بیان او روښانتیا په معنا: د خپلواکۍ څلی
– د تشبیه په مقصد: د سترګو تور، د عقل لاس
– د ظرفیت په معنا: د تېلو بوتل د غوړو ټیم.
– د وړتوب په مفهوم: د دوستۍ وړ.
**۲ـ توصیفي ترکیبونه:**
دغو ترکیبونو ته چې په عامه توګه توصیفي ترکیبونه وایي، هغه ترکیبونه دي چې د یوه نوم یا ضمیر د حالت څرنګوالی د صفت په واسطه بیان او ښیي. لکه ښکلی ښار، ژېړ ګل او نور. په پښتو ژبه کې توصیفي ترکیبونه داسې جوړیږي چې:
(صفت + نوم)، (نوم + نوم)، (نوم+ صفت)، (نوم+ قید)، (نوم + فعلي صفت)، (صفت + صفت)
**۳ـ عددي ترکیبونه:**

هغه ترکیبونه دي چې د شمېر (عدد) او نوم یا عدد او معدود څخه جوړ شوي وي. جوړښت یې داسې دی. **عدد + نوم** په پښتو ژبه کې عدد له خپل معدود څخه د مخه راځي، لکه: دوه قلمونه، یو کور، پنځه خونې او نور. ځینې نور ترکیبونه، لکه: تاکیدي (ټینګاري) ترکیبونه، اداتي ترکیبونه هم په پښتو کې استعمالیږي.

**ب: فعلي ترکیبونه:**

هغه ترکیبونه دي چې ستره مرکزي او اصلي برخه یې فعلونه دي. فعلي ترکیبونه معمولاً په جمله کې د خبر (مسند) برخه جوړه وي. دغه راز ترکیبونه په ځانګړې توګه ګرامري معنا هم څرګندوي او په ځانګړې توګه یوه جمله هم ګڼل کېدای شي.

په پښتو ژبه کې فعلي ترکیبونه په لاندې ډول جوړیږي:

- نوم + د فعل نوم (مصدر) =فعلي ترکیب لکه: کتاب لوستل، اخبار لوستل، لیک لوستل، په لاره کې درېدل
- مصدر + فعل = فعلي ترکیب لکه: غوښتل کوم، خوړل کوم، لیکل کوم، رټل کوي،
- قید +فعلي ترکیب = فعلي ترکیب لکه: عادلانه چلند کول
- نوم + مرستندوی فعل = فعلي ترکیب لکه: انسان یم
- صفت + مرستندوی فعل = فعلي ترکیب لکه: جوړ یم
- قید + مرستندوی فعل = فعلي ترکیب لکه: لرې یم ، نژدې یم
- عدد + مرستندوی فعل = فعلي ترکیب لکه: یو دی، دوې دي،
- د یم، وم مرستندوی فعلونه + فعلونه یا فعلي صفتونه = فعلي ترکیب لکه: راغلی یم، ګرځېدلی وم.

**فعلي** – اوسنی، موجود، پرخپل حال

**فعل** – چار، کار، چاره، کردار، عمل، خوځېدنه او عمل شوی کار

## ۲_ فقره:

فقره: نیمګړې جملې ته وایي. یا په بل عبارت فقره هم د ژبې له کلي واحدونو څخه ده او د جملې بنسټیز ارکان (مبتدا او خبر) لري، خو کله کله د معنا له مخې د لوی جوړښت یوه برخه ګرځي او مقیدیږي او کله بیا د یوه خپلواک ګرامري واحد په توګه کارول کېږي.

د بېلګې په ډول:"پسرلی راغی" یوه خپلواکه ګرامري بنه ده چې مبتدا او خبر دواړه لري. خو که وویل شي: پسرلی چې راغی مقید شوه او خپلواکه ګرامري بنه نه لري. په دغه حالت کې باید یوه ګرامري بنه رامخې ته شي چې معنا یې بشپړه شي. لکه: پسرلی چې راغی نړۍ ښکلې کېږي. چې په دغه صورت کې ویلی شو: پسرلی چې راغی یوه مقیده ګرامري بنه او نړۍ ښکلې کېږي یوه خپلواکه ګرامري بنه او فقره ده.

البته په پښتو کې داسې فقرې هم شته چې د معنا له مخې ګرامري بنه لري. خو د بڼې او جوړښت له مخې د جملې اصلي او بنسټیز ارکان (مبتدا او خبر) نه لري.

لکه: د الله په امان، سها ر په خیر او نور دغه ډول فقرو یا نیمګړو جملو ته کوچنۍ فقرې ویلی شو.

**د بڼې یا شکل له مخې د فقرې ډولونه:**

فقره د بڼې له مخې په دوو ډولونو بېلیږي: کوچنۍ فقرې او لویې فقرې.

۱– کوچنۍ فقرې: هغه فقرې دي چې د جملې بنسټیز ارکان (مبتدا او خبر) نه لري. لکه: هو، افسوس، او نور.

۲– لویې فقرې: هغه دي چې د جملې بنسټیز ارکان (مبتدا او خبر) لري. په لاندې خبرو کې د کوچنۍ او لویې فقرې

ښېلګې ښودلی شو.
احمده!
بلې!
چېرې یې!
دلته
څه کوې؟
هېڅ
په پورتنیو خبرو کې /چېرې یې؟ /= ته چېرې یې؟/ او / څه کوې؟/ یعنې ته څه کوې؟ د جملې بنسټیز ارکان لري، لویې فقرې دي او پاتې نورې: (بلې، دلته، هېڅ) کوچنۍ فقرې دي.
**۳ــ جمله**
جمله د هغو کلمو مجموعه ده چې یو بشپړ مفهوم ترې لاس ته راشي. یا په بل عبارت جمله د الفاظو او کلمو یو داسې ترکیب دی چې یو بشپړ مفهوم افاده او څرګند کړي. یا دا چې جمله د یوې ژبې هغه خپلواکه ګرامري بڼه ده چې هم د جوړښت او هم د معنا له مخې پوره او بشپړه وي. یعنی دا چې جمله د الفاظو او کلمو مجموعه ده چې یو له بله نحوي اړیکې ولري، پوره او خپلواکه معنا او مفهوم وړاندې کړي لکه: هغه ځنګل ته ولاړ. نجونې او هلکان ښوونځي ته ځي.
د جملې بنسټیزې برخې:
هره جمله دوه بنسټیزې برخې لري.
مبتدا او خبر
مبتدا او خبر د یوې جملې بنسټیزې برخې یا زړی (هسته) جوړوي، لکه: هلکان راغلل، شپه تېره شوه، لمر راوخوت، ټولنه پرمختګ کوي.
په پورتنیو جملو کې هلکان، شپه، لمر، ټولنه د مسند الیه (مبتدا) او راغلل، تېره شوه، راوخوت، پرمختګ کوي د مسند (خبر) برخې په خپلواکه توګه په جملو کې راغلي دي
**۱ــ مبتدا:** مبتدا په ګرامري توګه د جملې یوه خپلواکه معنا لرونکې برخه ګڼل کېږي چې په جمله کې د هغې په اړه خبر ورکول کېږي.
یا په بل عبارت: مبتدا (مسند الیه) هغه برخه ده چې د هغې په نسبت څه ویل کېږي، یعنې د یو حکم نسبت ورته کېږي د مبتدا په برخه کې د اشخاصو نومونه، قیدونه له ټولو ساده او مرکبو شکلونو سره راځي. سربېره پردې په اصلي او اوښتي حالت کې هم راتلای شي.
**۲ــ خبر مسند ــ فعل:**
خبر هم د جملې مهمه او بنسټیزه برخه ده. د جملې دا برخه د مبتدا حال څرګندوي.
په پښتو ژبه کې خبر هم د مبتدا په شان د وینا او کلام له ټولو توکونو څخه راتلای شي. خبر کېدای شي د جوړښت له مخې ساده یا مرکب وي.
خبر په دوو ډولونو وېشل کېږي اسمي او فعلي
یادونه: هغه جملې چې د خبر په برخه کې یې پوره فعل یا فعلي ترکیب راغلی وي د فعلي جملې په نوم یادیږي او هغه جملې چې مبتدا او خبر یې دواړه نومونه وي اسمي جملې ورته وایي.
د جملې ډولونه:

الف: د بڼې او جوړښت له مخې:

په پښتو ژبه کې جمله د جوړښت له مخې په دوو لويو ډلو وېشل کېږي:

۱– ساده جمله

۲– مرکبه جمله

۱– ساده جمله:

هغه جمله ده چې له يو فاعل او يو فعل يا په بله وينا له يو مبتدا او خبر څخه جوړه شوې وي په دوه ډوله ده:

الف – لنډه ساده جمله: هغه ده چې بنسټيزې برخې يې له يوې خپلواکې کلمې او يا لنډ ترکيب څخه جوړه وي. لکه: مومند راغی، فروزان کتاب لولي، د لمر سترگه پرېوته.

ب – اوږده جمله: چې د جملې بنسټيزې برخې (مسند اليه – مسند) د څو ساده لنډو يا اوږدو ترکيبونو څخه جوړې وي. د غازي ليسې زده کوونکو په کلنۍ ازموينه کې ښې نمرې واخيستې.

۲– مرکبه يا غبرگه جمله: هغه جمله ده چې له دوو يا زياتو ساده جملو څخه جوړه او يوه جمله له بلې سره لفظي او معنوي اړيکې ولري، خو هره جمله خپلې ځانگړنې لري.

**ب_ د معنا له مخې د جملې ډولونه:**

په پښتو ژبه کې جمله د معنا له مخې په دوو ډلو بېلېږي:

**۱_ خبري يا بيانيه جمله**

**۲_ نا خبري جمله**

**لومړی _ خبري يا بياني جملې:** هغه دي چې د يو څيز د حال او کيفيت بيان او څرگندونه کوي. په ليکنه کې ددې جملې په پای کې ټکی(.) اېښودل کېږي، لکه: احمد شاه بابا د افغانستان نوميالی واکمن او امپراتور تېر شوی دی. توريالی بازار ته ولاړ.

دويم– ناخبري يا انشايي جمله:

۱_ د ويونکي مطلب او موخه پوښتنه وي. په دې ډول جملو کې چې د يوه شخص، موضوع، ځای او وخت په اړه پوښتنه کېږي د ځواب غوښتونکي وي. په وينا کې د دې جملو ځانگړنه د غږ لوړوالی او فشاروي او په ليک کې يې د پوښتنې نښه(؟) په پای کې اېښودل کېږي لکه: دې جملو ته پام وکړئ:

چېرې ځې.؟ چا غږ وکړ؟ څه وخت راغلې؟ کله ښوونځي ته ځې؟ څوک درس وايي؟

**۲– امريه جمله:** چې د ويناوال مطلب او موخه په کې د يوه کار غوښتنه، امر، حکم، غوښتنې، هيلې، بلنې، او د اخطار په بڼه وي. دا ډول جملې د ويلو ځانگړی اهنگ لري لکه: ډوډۍ وخوره! دلته کېنېنه! درس ولوله! کور ته ولاړ شه!

**۳– تعجبي جمله:** د حيرانتيا او تعجب  په حالت کې ويل کېږي يا د حيرانۍ څرگندونه کوي. دا ډول جملې هم د پوښتنې جملې په توگه راځي. د بېلگې په توگه: افرين دې وي د احمدشاه بابا په توره او مېړانه چې د پاني پت جگړه يې وگټله؛

**۴– تمناي جمله:** د غوښتنې او هيلې مفهوم په کې نغښتی وي: کاشکې مې ليدلای وای! ارمان چې تللی وای!

**۵– شکي يا احتمالي جمله:** چې مطلب او موخه يې ثابته نه وي او شخص پکې دوه زړی وي. لکه: ښايي پلار يې هم ورسره راشي.ښايي چې پوښتنو ته به ځوابونه ووايي. گوندې ښه کتاب وي.

**٦_ ټينگاري جمله:** د ټينگار په موخه او غرض راځي لکه: خامخا ورځم، حتمي راشه حتمي ورځم.

**۷_ قسميه جمله:** چې په يو کار باندې د خلکو د يقين راوستلو لپاره په يوه سپڅلي او محترم شي، ذات باندې لوړه

کول ځرگندوي. لکه:

**د الله ﷻ په پاک ذات قسم خورم چې هېواد ته مې خدمت کوم.**

**خدای رو چې نه یم تللی.**

**۸ـ دعائیه جمله:** د خیرښیگڼې د غوښتنو او ځرگندولو لپاره ویل کېږي، لکه: ځه الله ﷻ دې مل شه! په خیر ورسیږې!

**الله ﷻ دې جوړ او روغ لره!**

**اخځلیکونه:**

ښاغلی ښوونکی کولای شي چې د دې لوست د لا زیاتو معلوماتو لپاره له لاندې اخځلیکونو ځخه گټه واخلي:

۱ـ هاشمي، څېړونکی سید محی الدین. د پښتو ژبې لنډ گرامر (صرف – نحوه)

۲ـ زېور، ډاکټره زرغونه ریښتین، پښتو نحوه دویم چاپ، د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز.

## اووم لوست

**د تدريس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | ملي نظمونه | |
| **د زده کړې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتي) موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د نظم په معنا او مفهوم به وپوهيږي.<br>– د ملي نظمونو د ډولونو په اړه به معلومات تر لاسه کړای شي.<br>–د نظمونو د ډولونو په هکله به خبرې وکړای شي.<br>– د ولسي شاعرۍ ډولونه به وپيژني.<br>– د عامو او خاصو سندرو په توپير به وپوهيږي.<br>– د لوست اړونده پوښتنو ته به مناسب ځوابونه ووايي.<br>– د ملي نظمونو په اړه به څو کرښې له بېلګو سره وليکي.<br>– متن به سم او روان ولوستلی شي.<br>– په متن کې به ځينې نومونه او صفتونه په نښه کړای شي.<br>– د عبدالرحمن بابا شعر به سم ولولي او په مفهوم به يې خبرې وکړای شي. | |
| **د تدريس لارې** | پوښتنه او ځواب، د کتاب لوستل، ډله ييز کار او يوکسيزکار. | |
| **د تدريس وسيلې او مرستندويه توکي** | کتاب، کتابچه، قلم، تخته د امکان په صورت کې کمپيوټراو انټرنېټ ته لاس رسی. | |
| **د ارزولو لارې او وسيلې** | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| **د زده کړې او تدريس فعاليتونه** | سلام او ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه او له تېر لوست څخه پوښتنې او بيا په نوي لوست پيل کول. | ۴ دقيقې |
| **د انګيزې رامنځته کول** | ښاغليه ښوونکيه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل کړئ! تاسې کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري وکړئ!<br>۱_ ملي نظمونه کوم نظمونه دي؟<br>۲_ څوک ويلی شي چې لنډۍ کوم ډول نظم دی؟ | ٦ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکي فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې په زده کوونکو باندې نوی لوست په پټه خوله ولولي.<br>– ښوونکی دې په څو زده کوونکو باندې نوی لوست ولولي او نور زده کوونکي دې د کلمو تلفظ او د جملو جوړښت ته ځير واوسي. | – زده کوونکي نوی لوست په پټه خوله لولي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي دلارښوونې سره سم متن په لوړ غږ لولي اونور زده کوونکي د کلمو سم تلفظ څاري. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی دې څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې دتختې مخې ته راشي او د موضوع په اړه دې خپل نظرونه په لنډډول څرګند کړي. | – څوتنه زده کوونکي په خپله خوښه په ورکړل شوي فعالیت کې ونډه اخلي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د ملي نظم په اړه څو کرښې له بېلګو سره ولیکي او په ټولګي کې دې د نورو ټولګیوالو پر وړاندې واوروي. | – زده کوونکي د ملي نظم په اړه څو کرښې له بېلګو سره لیکي او په ټولګي کې يې د نورو ټولګیوالو پر وړاندې لولي. |
| – له زده کوونکو څخه دې وپوښتلی شي چې په پښتو ژبه کې څو ډوله نظمونه شته؟ | – زده کوونکي په وارسره د ښوونکي پوښتنې ته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی دې په زده کوونکو باندې د متن اصلي مفهوم په څو لنډو خبرو کې بیان کړي. | – زده کوونکي د متن اصلي مفهوم په څو لنډو جملو کې بیانوي. |
| – ښوونکی دې لوستل شوی متن په څو شفاهي پوښتنو سره ارزيابي کړي.<br>– زده کوونکو ته دې لارښوونه وشي چې په خپله خوښه په وار سره د ملي نظمونو يوه يوه بېلګه معرفي کړي؟<br>– ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو دلوست په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده وسپاري. | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته د ملي نظمونوپه اړه ځوابونه وايي.<br>– زده کوونکي په خپل وار سره د ملي نظمونو په بېلګو خبرې کوي.<br>– زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع لیکي او په کور کې پرې کار کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

– عبدالرحمن بابا د عبدالستار زوی په ۱۰۴۲ هـ کال د پېښور سويل ته د بهادر په کلي کې زېږېدلی دی. عبدالرحمٰن بابا د پښتنو يو لوی قوم مومندو ټبر ته منسوب دی.

د فقهې او تصوف کتابونه يې په خپل کور او کلي کې د ملا محمد يوسفزي څخه ولوستل . عبدالرحمٰن بابا په ۱۱۲۸هـ. قمري کال کې ومړ او د پېښور د هزارخانې په هديره کې خاورو ته سپارل شوی. د اشعارو د یوان يې په پېښور او کابل کې څو ځلې چاپ شوی دی.

**محمد نور:**

د افغانستان له وتلو او نومياليو ولسي شاعرانو څخه شمېرل کېږي. نوموړی د لغمان ولايت د اليشنګ ولسوالۍ اوسېدونکی و چې ملي نظمونو ته يې په خپل وخت کې ډېرکار کړی دی لکه:

داستان، چاربيتې، بګتۍ او داسې نورو برخو کې.

**اضافي معلومات:**

**ملي نظمونه:**

د نړۍ په هر ولس او پرګنو کې داسې سندرې، بدلې، منظومې کيسې او داستانونه شته چې له يوه نسل څخه بل نسل ته

په شفاهي او ليکلي بڼه ورپاتې شوي دي. د خلکو په ژبه او فکر کې تل پاتې وي. د دې وينا او کلام نسبت تر ډېره کوم شاعر او ليکوال ته نه کېږي. د دې ادبي او هنري تخليقاتو (پنځونو) نېټه او ځای هم معلوم نه وي. له همدې کبله دې نظمونو او ادب ته ګډه يا شريکه ملي پانګه ويل کېږي. د دې منظومو اهنګونو بېلا بېل ډولونه او فورمونه له ډېرو لرغونو زمانو څخه له يوه نسل څخه بل نسل ته سينه په سينه راپاتې دي. په لرغونو آثارو کې يې بېلګې په ليکلي بڼه هم شته.

ز موږ پښتو ملي نظمونه او ولسي سندرې په فولکلوري يا ولسي ادبياتو کې خوندي شوي، چې اوس يې په هره سيمه او لهجه کې د خپلو ژبنيو ځانګړنو په لرلو سره هره يوه بېله بڼه او جوړښت لري.

څېړونکي په دې اند دي چې له زردشتي ګاتونو (سندرو) څخه لا دمخه په ساکو او باختريانو کې د ارباب الانواعو او ولسي اتلانو په هکله ډېرې حماسې، منظومې، کيسې ،ملي نظمونه، ترانې او سندرو شتون درلود.

**لنډۍ:**

لنډۍ په پښتو ادب کې ځانګړی ځای او ارزښت لري. د بڼې له مخې هغه موزون او آهنګ وال کلام ته لنډۍ ويل کېږي چې لومړۍ مسره يې (۹) څپې او دويمه يې(۱۳) څپې ده.

لنډۍ چې د ټپې، مسرۍ، ټيکۍ په نومونو هم يادې شوي دي، کېدای شي چې په سروکو کې د هغو د ويلو او لهجوي تلفظ په هجايي فشار کې بدلون راشي. خو د څپو شمېر يې بايد ثابت وي.

پښتو لنډۍ ولسي شعر دی، چې ويونکي يې معلوم نه وي. دغه شعر ځانته ځانګړی وزن او آهنګ لري. د منځپانګې له پلوه هغه لنډه وينا ده چې په ډېرو لنډو جملو کې ډېر لوی مطلب څرګندوي.

په دې ژانر کې ډول ډول ټولنيزې غوښتنې، پيغامونه، نظريات، تاريخي پيښې ،اقتصادي او سياسي مسايل منعکس کېدای شي.

په لنډيو کې ټولې هغه ټولنيزې اړتياوې وي لکه: درد، خپګان، بېلتون، ناخوالې، نابرابرۍ، بېوزلي، تبری، مينه، محبت، يوځايوالی او داسې نور مطالب په ساده الفاظوکې د خلکو په ژبه ويل کېږي چې دې ته د خلکو شفاهي موزون کلام هم ويل کېږي. په پښتو ادبياتو کې لنډۍ تاريخي ارزښت لري. لنډۍ هغه کلام دی چې د ټولنې د غوښتنو غږونه هم ورته ويلی شو. زموږ د تاريخ د بيان او څرګندونو يوه ځلانده بڼه لنډۍ جوړوي. دغه فورم په طبعي توګه تاريخي پېښې او تاريخي حقايق له يوه نسل څخه بل نسل ته لېږدوي. د تاريخ تياره ګوټونه رڼا کوي. د څېړنې لپاره کره او پوره سرچينې ګڼل شوي دي.

– پښتو لنډۍ د نرينه او ښځو له خوا ويل شوې دي او په پښتو لنډيو کې د ښځو ونډه ډېره ده. يعنې ډېرې لنډۍ د ښځو اوپيغلو له خوا رامنځته کېږي.

په لنډيو کې انسانان خپل ګڼ احساسات او خيالات نوروته څرګندوي.

پښتو لنډۍ چې لنډې ويناوې دي د ژوند له تجربو څخه راوتلي دي. په ټولنه کې د هرې سيمې جغرافيه، تاريخ او نورې ټولنيزې پېښې په کې انځور کېدای شي. د بېلګې په توګه: په کوچياني ژوند کې ويل شوې لنډۍ د کوچيانو د ژوند يوه روښانه هنداره بلل کيدای شي. ګل پاچا الفت په دې هکله داسې ويلي دي:

((پښتو لنډۍ چې په هر چا ښې لګي او ټولنيز ښايست لري. سبب يې دا دی چې ټول خلک پرې پوهيږي.))

**سروکي:**

سروکي هم د نظمي بڼې په لړ کې بېلا بېل ډولونه او رنګونه لري. په پښتو کې سروکي د نيمکۍ په نوم هم يادېږي. دغه ډولونه او فورمونه د ولسي بدلو يا سندرو ستره برخه جوړوي. سروکي په يوازې ډول نه ويل کېږي. بلکې د لنډيو سره په بېلا بېلو کمپوزونو او تون سره اجراء کېږي. سروکي ولسي ملي رنګونه لري چې د اتڼ له ناروسره هم ويل کېږي. په

سروکي کې د ملي پېژندنې ټکي، د ژوند بېلا بېل اړخونه حماسي برخه، د طبیعت ښکلا، او عاطفي احساسات انعکاس مومي.

د سروکو له اورېدو څخه موږ پوهېږو چې دا د یوې تاریخي پېښې څرګندوی دی. ځینې څېړونکو دا فورم په دریوو برخو وېشلي:

۱– چې لومړۍ مسره یې اوږده او دویمه مسره یې لنډه وي.

لکه: زما خیالي وربل ته جوړ کړه تاویزونه      وئ وئ یاره زرګره

۱۳ هجاوې      ۹هجاوې؟

۲– چې لومړۍ مسره یې لنډه او دویمه یې اوږده وي. لکه:

راځه دلبره، خانه راځه = په دیدن موږ شوې که مخ بیا درواړومه

۹ هجاوې      ۱۳ هجاوې

۳– چې دواړه مسرې یې سره برابرې وي، دا ډول مسرې کله په فاقیه کې سره یو او کله هم سره بېلې او نابرابرې وي. لکه:

د عاشقۍ په سین ګډېږم بې ګودره = ماته ښکلې اورۍ جوړه کړه زرګره

۱۳ هجاوې      ۱۳ هجاوې

**بابولالې:** دا ډول سندرې د سیمه ییزې موسیقۍ سره په ځانګړو غږونو اوتون سره ښځې د خوښیو په مراسمو کې وایي، د دې سندریز ډول موضوعات معمولاً د ښادیو، خوښیو په اړه وي. غندنې (هجوه) ستاینې، نیوکې او په ودونو پورې اړوندې ټولنیزې دودیزې فولکلوري پېښې او مسِلې په دغو بابولالو کې د ښځو له خوا په بېلا بېلو بڼو او غږونو ویل کېږي.

بابولالې غالباً له دریوو برخو څخه جوړې وي. بابولالې هم د نورو ادبې او هنري ډولونو په څېر د ټولنیزو اړتیاوو پر بنسټ منځ ته راغلي او ډېر لرغونی تاریخ لري.

دبېلګې په توګه:

تر بالښت لاندې انار دی
داسې زوم مــو دروستلی
چې نامـــتو د کندهار دی

همدارنګه داووه څپه ییزې بابولالې یوه بېلګه:

سربې ورو ورو غوړوئ
لورکۍ ده په مور ګرانه
سر یې ورو ورو بېلوئ

نارې: په ملي نظمونو کې نارې هم ځانته ډولونه لري. نارې په پښتو ادبیاتو کې حماسي ولسي سندرې دي. زموږ په ولسي ادب کې سینه په سینه له یوه نسل څخه بل نسل ته راپاتې شوي دي. نارې د افغانانو هغه تاریخي کړه وړه اودژوند پېښې څرګندوي چې د هېواد د خپلواکۍ او د پردیو پر وړاندې د ملي احساساتو د هڅونې او ډاډ ورکولو لپاره په ولسونو کې راغلي دي. پښتو نارې په حماسي نظمونو کې راځي، چې د هرې سیمې او قوم له خوا په بېلې بڼې سره جوړې او ویل شوي دي، چې ډېرې مشهورې یې په پښتو ژبه او ادب کې د هوتکو نارې، د ناصرو نارې، د ملي اتڼ

ناري د ساري په توګه يادولی شو. د هوتکو ناري د هوتکو د واکمنۍ او د هغو د ملي غورځنګونو په بهير کې جوړې سندرې وې. دغو سندرو يا (نارو) د ملي مشر ميرويس خان نيکه د واکمنۍ هم مهاله د هوتکو په ولسي ادب او فولکلور کې ځای موندلی دی. دا فولکلوريکې سندرې چې د ناصرو غيرتي ښځو او ځوانانو له خوا ويل شوي د هوتکو د واکمنۍ تر پای پورې د هغو جوړښت دوام موندلی دی.

د نورو ملي نظمونو په څېر ناري هم ټاکلي معلوم ويونکي نه لري. د هوتکو ناري د هوتکو په دوره کې ويل شوي دي. له ځينو نارو څخه دا څرک لګيږي. چې د ميرويس خان نيکه لور مېرمن زينبې ويلي دي. لکه: د سيدال خان ناصر په باره کې ويل شوې ناري د همدې په نامه ثبت شوي دي، خو په غوڅ ډول سره نه شو ويلی چې د ښځو زياتره ناري به د مېرمن زينبې وي.

په پټه خزانه کې راغلې ناري د مېرمن زينبې دي چې د خپل ورور په مړينه يې ويلي دي:

ږغ سو چې ورور تېرله دنيا سونا　　قندهار واړه په ژړا سونا

زړه مې په وير کې مبتلا سونا　　چې شاه محمود له ما جلا سونا

د اتڼ ناري:

اتڼ د اريايي توکمونو يو مهم او په زړه پورې لوبه او نڅا ده، چې له لرغونو زمانو څخه د افغانستان په زياترو سيمو کې په بېلا بېلو ډولونو او حرکاتو تر سره کېږي. دا دود هم په افغاني ټولنه کې خورا مشهور دی. اتڼ د خپلواکۍ په جشنونو، ودونو، اخترونو، مېلو، اشرونو او د خوښۍ په وختونو کې تر سره کېږي. د اجرا په وخت چې ځوانان يا پيغلې يې تر سره کوي، ورسره غږونه باسي او ګډونوال په شور او زوږ راولي، چې دغو نارو ته د اتڼ ناري وايي. د اتڼ په نارو سره اتڼ چيان خپل منظم حرکتونه او نڅاوې له ځانګړي موزيک سره تنظيموي او په دغو. نارو کې د (ها، هو) او دې ته ورته هيجاني کلمې تکرارېږي لکه: دا تور چکن ماته جولۍ راوړه — نور چکن که جولۍ نه وي ماته کوښې بلوڅۍ راوړه

## کاکړۍ غاړې:

کاکړۍ د پښتو ژبې د نظمي ډولونو څخه يو ډول دی، چې د ملي لنډيو په څېر ځانګړنې او پراخې منځ پانګې (محتوا) په خپله ارته لمن کې رانغاړي. دغه ډول کاکړۍ (غاړې) د پښتو ژبې له لنډيو سره په تول (وزن) او ډول کې توپير لري. د مسرو د هيجاوو شمېر يې کله اته او يا هم نه (۹) سيلابه وي. څنګه چې يې له نامه څخه څرګنديږي دغه ډول لنډۍ د کاکړو قوم ته چې د (کويټې) په سيمې پورې اړوندو ځايونو کې مېشته دي اړه لري.

د څېړنو له مخې دغه کاکړۍ غاړې د لومړي ځل لپاره پنځه سوه کاله وړاندې په ږوب کې پيل او ويل شوي دي. ځينې بيا وايي چې د دې غاړو د معلومې نېټې ويل ګران دي. خو ځينو بيا د نورو ټېرونو سره د تګ راتګ پيل د دې کاکړيو غاړو پيل هم مهاله ګڼلی دی.

د پارسي ژبې د مثنوي په څېر بڼه او منځپانګه لري. د مثنوي په څېر د وروستيو تورو غږونه سره برابر او همغږي راوړل کېږي. د دې ډول نظم په جوړولو کې د سخرخېل او سنتيا کاکړانو ډېره ونډه اخيستې ده، چې د ږوب اوسيدونکي دي. دغه ناري هم د پښتود ملي لنډيو په څېر ښځو ډېرې ويلي او هم يې تر نرينه وو زياتې په خپلو زړونو او مغزوکې خوندي ساتلي دي.

د بنې له پلوه د دې لنډيو د مسرو او هيجاوو په شمېر کې بدلون ليدل کېږي.

د ملي لنډيو په څېر وزن، آهنګ اوپه هېجا (۹–۱۳) څپوکې شمېر په دقيقه توګه نه ساتي، لږوالی او زياتوالی په کې ليدل کېږي.

لهجوي وزن پکې غالب ښکاري.

په ببلا ببلو وزنونو ویل شوي دي، زیاتې یې غرني او بې تعلیمه خلک وایي.
د ساري په توگه: (ر — ن) توري سره هم غږه یا هم غاړه کوي او قافیه تړي، لکه په دې کاکړۍ کې

په تحصیل کې ټکهار دی     د سرو ښکار کوي شېر جان دی

د منځپانگې له مخې دغه کاکړۍ غاړې په ناڅاپي ډول نه دي جوړې شوي او نه جوړیږي. د هرې لنډۍ جوړول یو تاریخي پس منظر لري. د تاریخي پیښو، اړتیاوو وړتیاوو او ځانگړو احساساتو پر بنسټ منځ ته راغلي دي. دغه غاړې له تاریخي پلوه یوازې د کاکړو قوم ته نه شي ځانگړې کېدلی، هلته چې په سیمه کې کوم پښتانه ټبرونه لکه غلجي، تره کي، اڅکزي، مندوخېل یا نور قومونه چې په پښتنې سیمو کې اوسېدل، هغوی یې هم په جوړولو کې ونډه لري. دغه غاړې د ټولنیزو اړتیاوو پر بنسټ جوړې شوې او ویل کېږي.
د دې غاړو مضمون تاریخي پیښې، اخلاق، جنگي او قومي گډ ژوند، ورځنی کسب اوکار، خوښي، نا خوښي،د مینې جذبې، غوښتنې، بیوزلي، بېلتون، یوځایوالی، مزدوري، مېړانه، زړورتیا، د ژبې ساتنه او پالنه او د انساني ژوند نور ډېر اړخونه په دې نظمونو کې روښانه کیدای شي.

توره شپه ده توره خونه     شین خالی نه ده معلومه

توره شپه به خدای رڼا کا     شین خالی به خدای پیدا کا

ساندې: په لغت کې په مړي باندې ژړلو، ویرکولو او د هغه د ښو یادونو او کړنو، ستاینواو یادولو ته سانده وایي، جمع یې ساندې کېږي. په ادبې برخه کې یو نظمي ډول گڼل شوی. د وینا په ټولو ژبو کې یې له پخوا څخه دود درلود.
همدا ډول د لویدیځ په ادبیاتو کې هم مرثیه اوږد تاریخ لري.

**منظوم او منثور متلونه:**

د هرې ټولنې په ولسي ادب کې متل ځانگړی ارزښت او ځای لري.
**متل:** په پخو تجربو باندې لنډې ویناوې دي چې د ډېرو پراخو مطلبونو څرگندونه کوي. دغه لنډې ویناوې اهنگینې (منظومې) کله هم د ساده روان نثر په څېر ویل کېږي.
د ساري په توگه:

**پښتانه وایي:**

کارغه د زرکې تگ کاوه  خپل یې هېر کړ. هر چاته خپل وطن کشمیر دی. دې متلونو ته د ساده نثري متل بېلگې ویلی شو.
د متلونو جملې لنډې، پخې، کره او پوره منل شوي او هره یوه یې په ځانگړي ځای او زمان کې خپله معنا او اغېزه ښندي.
د هرې موخې د څرگندتیا لپاره یوه جمله راوړل کېږي. متلونه په معیاري ژبه کې د ټولو ویونکو او اورېدونکو لپاره د پوهاوي وړ وي. متلونه د تېرو نسلونو د فرهنگ سترې برخې جوړوي. دغه د پوهانو، لویانو او د ولس په ژبه ویل شوي اندونه په لنډو الفاظو کې څرگندوي.
دغه برخه په ژبه کې د لنډیو په څېر په ټولنیزه توگه د پاملرنې وړ برخه گڼل کېږي. دغه برخه په ژبه کې د تاریخي ټولنیزو پیښو، مذهبي احکامو، سندرو، بدلواوځینې یې له نورو ژبو څخه د ژباړې له لارې او همدا ډول د گاونډیو د فرهنگي اغېزو له امله رامنځته شوې د ارزښت وړ ویناوې دي، چې د تفکر او احساس ورکولو سترې سرچینې یې گڼلی شو.
متلونه تل په نحوي بڼه کې سمبال نه وي .که چېرې نحوي جوړښت ورکړ شي، نو بیایې لنډوالي ته زیان رسیږي او خپله

کنايي لومړی معنا له لاسه ورکوي. متلونه د لرغونو ادبياتو ژبې، تاريخ او فرهنگي برخو څېړنيزې سرچينې گڼلی شو. د متلونو ويونکي معلوم نه دي ،خو دغه عالمانه خوندورې ويناوې په شفاهي ادب کې تلپاتې ځای او ارزښت لري.

متلونو ته پښتانه د هوښيارانو خبرې هم وايي. په دې اړه ماکيسم گورگي وايي:

((په لفظي ساده گۍ کې يې تر ټولو لويه هوښياري او حکمت ځای پرځای شوی دی، متل تل مؤجز وي، خو د بشپړ کتاب تفکر او احساس ورکې وي.))

ده به ليکوالو ته ويل چې له متل څخه ليکوالي زده کړئ چې الفاظ په کې داسې کښل شوي وي لکه په موټي کې گوتې.

متل د ولسي نړۍ ليد، تفکر او ذهنيت بېل بېل اړخونه تر سيموي.

متلونه مذهبي، اخلاقي، اقتصادي، جغرافيوي، تاريخي، سياسي او نورو ټولنيزو موخو د څرگندتيا لپاره کارول کېږي. د متل د کارولو ځای او زمان په ويونکي پورې اړه لري چې وېې پيژني.

د بېلگې په توگه لاندې متلونه ولولئ:

-وروستيه فکره چې ته ړومبی وای.

-کيږدۍ په خپلو مراندو ولاړه ده.

-پوره ورک دې کړه دوه کوره. پرښو تلوار او په بدو تأمل.

**اخځليکونه:**

ښاغلی ښوونکی کولای شي چې د دې لوست د لا زياتو معلوماتو لپاره له لاندې اخځليکونو څخه گټه واخلي:

۱ــ رفيق محمد، رفيق، ادبپوهنه.

۲ــ هېوادمل، سر څېړونکی زلمی، د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغوني او منځنۍ دوره).

۳ــ يون، پوهنمل محمد اسمعيل، د پښتو ادبياتو هندسي جوړښت.

# اتم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ولسي کیسه | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– ولسي کیسه به وپېژندلی شي.<br>– د نورو ولسونو له ملي کیسو سره به بلد شي.<br>– متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– د ولسي کیسو د ځانګړتیاوو په هکله به څه ولیکلای شي.<br>– د لوست اړوند پوښتنو ته به سم ځوابونه وویلای شي.<br>– د کیسې د متن د مطلب او ښو پایلو په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونه ترسره کړای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، د کتاب لوستل، ډله ییز کار کول او په یوازې توګه کار کول. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندویه توکي | کتاب، کتابچه، قلم، تخته او د امکان په صورت کې د ولسي کیسو ټولګې. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، څارنه، د پوښتنې او ځواب ارزونه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه، د تېر لوست په اړه پوښتنې او بیا په نوي لوست پیل کول. | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځته کول | ښاغلیه ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ. تاسې کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو لري وکړئ!<br>۱– په پښتو ادب کې کومې ولسي کیسې پېژنئ ؟<br>۲– له پخوانیو ولسي کیسوڅخه چې مو اوریدلې دي یوه مو په یاد زده ده؟<br>۳– د کوم بل هېواد ولسي کیسه مو اورېدلې؟ | ۶ دقیقې |

| ښوونکي فعالیتونه | زده کوونکي فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکي دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې کیسه په پټه خوله ولولي او لاندې پوښتنې دې ځواب کړي.<br>• دا کیسه په کوم ولس پورې اړه لري؟<br>• د کیسې موخه څه ده؟<br>– ځینې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راوغوښتل | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په پټه خوله لولي او پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>– څو زده کوونکي په خپله خوښه د درس مفهوم بیانوي. | |

| | |
|---|---|
| شي چې د کیسې مفهوم په خپل وار سره نورو ټولګیوالو ته ووایي. | |
| - ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو وویشي د یوې ډلې یو زده کوونکی دې د متن یو یو پراګراف په لــوړ غــږ ولولي نور دې د کلمو او جملو تلفظ ته غوږ ونیسي. | - زده کوونکي ډله ییز فعالیت ترسره کوي. |
| - ښوونکی دې څو زده کوونکو ته لارښوونه وکــړي چې د ولسي کیسو د ارزښت په اړه خبرې وکړي. | - زده کوونکي په وار سره د ولسي کیسې د ارزښت پــه اړه خبرې کوي. |
| - زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړای شي چې د متن اصلي مفهوم په څو لنډو خبرو کې څرګند کړي. | - زده کوونکي د متن اصلي مفهوم ټولګیوالو ته په خپله ساده ژبه وایي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي که مو د دې کیسې په څېر کومه ولسي کیسه اورېدلې وي پــه لنډه توګه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیــا دې د ټولګي په وړاندې ولولي. | - زده کوونکي له خپل ځانه کومه ولسي کیسه په شــفاهي ډول په لنډه توګه په خپلو کتابچو کې لیکي او د ټولګي پــر وړاندې وایي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د پښــتو ولســي کیسو په اړه پوښتنې وکړي لکه :ادم خان او د ورخانۍ، مومن خان او شیرینو او نور. | - زده کوونکي د ښوونکي د پوښتنو اړوند ځوابونه وایي. |
| _ ښوونکی دې زده کوونکو ته کورنۍ دنده وسپاري | - زده کوونکي کورنۍ دنده  په خپلو  کورونوکې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**کرکټرونه:** دکیسې یا ډرامې هغه لوبغاړي دي، چې پر سوناژ هم ورته ویل کېږي. هغه کسان چې په کیسه یا ډرامه کې وي او عمل کوي کر کټر هم ورته وایي .په دغو کرکټرونو کې څو مر کزي کرکټرونه هم وي چې هغه ته د کیسې اتــل وایي .مرکزي کرکټر یا اتل له ستونزو او خنډونو سره د مقابلې او مجادلې  په ډګر کې له بېلابېلو حــالتونو او پړاوونــو سره مخامخ کېږي. غورځي، پرځي، خو په خپل ټول وس او ځواک سره د موخې په لور له وړاندې تګ څخــه لاس نــه اخلي.

**شفاهي:** په خوله وینا، هغه خبره یا وینا چې مخامخ په خوله او ژبه وشي.

**پېړۍ:** یوه پېړۍ ۱۰۰ کاله ده.

**سیلۍ:** توپان، تېز باد.

**اوتې بوتې:** ګډې وډې،  بې معنا خبرې.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

څنګه چې د ولسي کیسې په اړه د درسي کتاب په اتم لوست کې په ځانګړې توګه معلومات وړاندې شوي دي، نو دلتــه غواړو چې  ولسي کیسه په لنډه توګه در وپېژنو.

ولسي کیسه د پښتو ژبې د شفاهي ادبیاتو ډېره خوندوره او په زړه پورې برخه ده. دا ډول کیسې له ډېرو پخــوا زمــانو راهیسې د هر هېواد د خلکو  په ذهنونو او همدارنګه زموږ د هېواد د خلکو په حافظو کې راپاتې دي، دغه بډایه شــتمنې له یوه نسل څخه بل نسل ته سینه په سینه راپاتې ده څنګه چې ولسي کیسې د خلکو  مال دی، نو دا کیسې په کلیــو او

بانډو کې شتون لري. ځینې کیسې د خپل ځانګړي رنګ، خوند او شهرت له کبله نورو کلیو او بانډو تــه رســیدلي او هلته عامې شوې دي.

په پښتو ژبه کې دوه ډوله کیسې شته چې یو ډول یې د پښتو خپلې کیسې دي او بل ډول یې له نورو ژبو او هېوادونــو څخه زموږ په شفاهي ادبیاتو کې رادننه شوي دي.

دپښتو ژبې په ولسي کیسو کې هر څه پښتني دي او پښتني رنګ لري. لکه: اتلان، چاپیریال، پېښې کرکټرونه او داســې نور.

ځینې کیسې ډېرې اوږدې او ځینې یې لنډې وي. په دې ډول کیسو کې ځینې په نظم او ځینې یې په نثر کې وي.

ولسي کیسه بېلا بېلې موضوعګانې لري او د نصیحتونو برخه پکې هم وي. په تخیلي کیسو کــې د دېوانــو او پیریــانو کیسې راځي او ځینې کیسې یې د ژوندانه له پېښو سره هم اړیکې لري.

د ولسي کیسو اورېدل ډېر په زړه پورې وي. دا ډول کیسې زموږ د هېواد په زیاترو کورنیو کې د ژمي په موسم کې چــې هوا ډېره سړه وي د وزګارتیا او ساعت تېرولو په موخه ویل کېږي. دغه کیسې د هغه چا له خوا ویل کېږي.

چې ډېرې کیسې یې له یاده زده وي. ددغو کیسو له اورېدلو څخه سړی بیلا بیل پیغامونه تر لاسه کوي.

زیاتره یې تنکي ځوانان مینه وال دي. په پښتو ژبه کې زیاتره لیکوالان او شاعران هم په نظم او هم په نثــر کــې دا ډول کیسې لري. ځینو شاعرانو زموږ ولسي کیسې په نظم کړي لکه آدم خان او درخانۍ ،دلی او شهۍ، مومن خان او شــېرنو، طالب جان او ګل بشره، موسیٰ خان او ګل مکۍ، فتح خان او رابیا او نور، د درسي کتاب په اتم لوست کې یــې هــم یادونه شوې ده.

**اخځلیکونه:**


۱ــ د نړۍ ولسي کیسې ،صفیه حلیم ، میوند کلتوري ټولنه ،کندهار ۱۳۸۴هــ ش کال.

۲ــ ملي هینداره – محمد ګل نوري.

۳ــ د پښتو نثرهینداره، ربنتین پوهاند صدیق الله.

## نهم لوست

**د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | سيد بهاوالدين مجروح | |
| **دزده کړې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتي) موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>ـ زده کوونکي به د سيد بهاوالدين مجروح علمي او ادبي شخصيت وپېژني.<br>ـ زده کوونکي به د سيد بهاوالدين مجروح له آثاروسره بلد شي.<br>ـ زده کوونکي به د سيد بهاوالدين مجروح د ځانځاني ښامار د اثر په اړه معلومات تر لا سه کړي.<br>− زده کوونکي به د سيد بهاوالدين مجروح د فرهنگي خد متونو په اړه معلومات ترلاسه او په دې اړه به خبرې وکړای شي.<br>− زده کوونکي به دکتاب فعاليتونو ته ځوابونه وويلای شي. | |
| **د تدريس لارې** | پوښتنه او ځواب، د کتاب لوستل، ډله ييز کار او په يوازې توگه کار. | |
| **د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي** | کتاب، کتابچه، قلم، تخته، تخته پاک، مارکر او د امکان په صورت کې کمپيوټر او انټرنېټ ته لاس رسی. | |
| **د ارزولو لارې او وسيلې** | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| **دزده کړې او تدريس فعاليتونه** | سلام اچول سترې مه شې، د حال او احوال پوښتنه، له تېر لوست څخه پوښتنې او بيا په نوي لوست شروع کول. | ۴ دقيقې |
| **د انگېزې رامنځته کول** | ښاغليه ښوونکيه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل کړئ.<br>− د مجروح کلمه مو اورېدلې او څه معنا لري؟<br>− آيا د مجروح په نامه اوتخلص څوک پېژنئ؟<br>− څوک د سيد بهاوالدين مجروح د آثارو نومونه اخيستلای شي؟ | ٦ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|
| − زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د نوي لوست متن په پټه خوله ولولي، بيا دې څو تنه زده کوونکي په وار سره د متن يو يو پراگراف په لوړ غږ ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي. | − زده کوونکي نوی لوست په پټه خوله لولي او په مطلب يې خبرې کوي. بيا څوتنه زده کوونکي متن په لوړ غږ لولي او نور زده کوونکي ورته غوږ نيسي. |
| − ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د ځانځاني ښامار شعر بېلگې ولولي او هم په وار سره د هغه په مطلب خبرې وکړي | − زده کوونکي د ځان ځانۍ ښامار د شعر نمونه لولي او په مطلب يې خبرې کوي. |
| − زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړای شي چې له متن | − زده کوونکي د سيد بهاوالدين مجروح په اړه څو کرښې په |

| | |
|---|---|
| څخه د سید بهاوالدین مجروح په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې ووایي. | خپلو کتابچو کې لیکي او بیا یې په وار سره په ټولګي کې اوروي . |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې لاندې لغتونه معنا او په خپلو کتابچو کې دې په جملو کې وکاروي: الحاد، دامن، ډیالکټیک،چم، جبین. | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم لغتونه معنا او په جملو کې یې استعمالوي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په یوازې توګه په متن کې صفتونه( ستاینومونه) په نښه او بیا دې ورته جملې جوړې کړې. | – زده کوونکي په یوازې توګه په متن کې صفتونه (ستاینومونه) په نښه کوي اوپه جملوکې یې کاروي . |
| – له زده کوونکو څخه وپوښتئ که چېرې تاسې هم د مجروح په شان ملي شخصیت شئ د خپلې ژبې او هېواد لپاره به کوم کارونه وکړای شئ. هر زده کوونکی دې خپل نظرونه په بېلا بېلو پاڼو کې ولیکي. | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم فعالیت تر سره کوي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ډلو وویشي او هره ډله دې په خپل وار سره له بلې ډلې نه دا لاندې پوښتنې وکړي.<br>• له دې لوست څخه مو څه مفهوم واخیست؟<br>• د متن اصلي مفهوم په څو لنډو خبرو کې څرګند کړئ.<br>• تاسې د پښتو ادب په معاصره دوره کې د کومو لیکوالو او شاعرانو له نومونو سره آشنا یاست؟ | – زده کوونکي دوه ډلې کېږي او په خپلو منځونوکې یو له بل څخه پوښتنې کوي، د یو او بل پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| – ښوونکی زده کوونکو ته د پښتو په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده سپاري. | – زده کوونکي کورنۍ دنده په خپلوکتاپچوکې لیکي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**عبدالروف بېنوا:** د مفتي عبدالله زوی په ۱۲۹۳ ل کال په کندهار کې زېږېدلی. ستر ادیب، لیکوال او مفکر شخصیت و چې په پښتو ژبه کې یې زیات ګټور آثار لیکلي. د بېلګې په ډول یې د یو څو نومونه اخلو: اوسني لیکوال ۱_۲_۳ ټوکه، د افغانستان نومیالي ۴ ټوکه، زوړ ګهنکار د ډرامو ټولګه. نوموړی په ۱۳۶۳ ل کال په نیویارک کې ومړ او هورې خاورو ته سپارل شوی دی.

**روحیات:** د روح جمع ده چې د (ارواح) په معنا ده.

**فلسفه:** ۱_ د پوهې او تعقل سره مینه؛ ۲– ټول نظري او علمي معلومات؛ ۳– د تفکر او تعقل علم.

**تدریس:** جمع یې تدریسات دي، چې د تعلیم، ښوونه، درس ورکولو معناوې لري.

**تدریس یا ښوونه:** هغه پلان شوي فعالیت ته ویل کېږي چې موخه یې د زده کوونکو زده کړه وي.

**هجرت:** لېږدېدنه، کډوالي، بېلتون، د ځینو ستونزو له کبله د هېواد پرېښودل.

**بوستان سعدي:** دغه کتاب د فارسي ژبې پیاوړي لیکوال او شاعر سعدي په **٦٥٥** هــ کال په نظم لیکلی دی. یو ډېر وتلی اثر ګڼل کېږي.
سعدي دغه کتاب د ابوبکر بن سعد بن زنګي په نوم جوړ کړی دی. بوستان څو څپرکي لري چې لاندې موضوعګانې پکې شاملې دي:
عدل او انصاف، نیکي او ښښنه، مینه، تواضع او مېړانه، د روزنې ادبونه، روغتیا او سلامتیا، توبه او ا لله(ج) ته رجوع کول، مناجات او د کتاب ختم.
**ګلستان سعدي:** ګلستان یو مشهور کتاب دی چې نامتو ادیب او شاعر سعدي په پارسي ژبه په **٦٥٦** هــ کال کې د شاهزاده سعد بن ابوبکر بن زنګي په نوم په نثر تألیف کړی دی.
ګلستان یو روزنیز او اخلاقي کتاب دی. یوه سریزه لري. په اتو څپرکو وېشل شوی دی: د دغه کتاب موضوعګانې دا دي:
د پاچاهانو لیکنې، د ملنګانو او درویشانو د اخلاق او کړه وړه ، قناعت.

**اضافي معلومات:**

**پوهاند سید بهاوالدین مجروح:**

پوهاند سید بهاوالدین مجروح د سید شمس الدین مجروح زوی د افغانستان یو نامتو مفکر، لیکوال، ادیب، سیاستپوه او عالم شخصیت و. په **١٣٠٦** ل کال د کونړ ولایت د اسمار د شینکوړک په کلي کې وزېږېد او خپلې لومړنۍ زده کړې یې د خپل کلي په جومات کې تر سره کړې. له لومړنیو زده کړو څخه وروسته کله چې له خپل پلار سره د هیواد پلازمینې کابل ته راغی د **١٣** کلنۍ په عمر یې رسمي زده کړې شروع او د استقلال لېسې په څلورم ټولګي کې په زده کړو بوخت شو. په **١٣٢٩** ل کال کې د نوموړې لېسې د ادب او فلسفې له څانګې څخه په لومړۍ درجه فارغ شو.
تر فراغت وروسته د خپل لیاقت اووړتیا له مخې د دولت له خوا د لوړو زده کړو لپاره فرانسې ته ولېږل شو.
مجروح په فرانسې کې له **١٣٣١** نه تر **١٣٣٧** لمریز کال پورې د پاریس په سوربن او بیا د مونپې پلیه په پوهنتونونو کې خپلې لوړې زده کړې د روحیاتو او فلسفې په څانګه کې د مافوق لیسانس تر درجې پورې سر ته ورسولې. په همدې دوره کې په دې بریالی شو چې د آلماني او انګریزي ژبو او ادبیاتو زده کړې په آلمان او انګلستان کې سرته ورسوي. پوهاند مجروح په **١٣٣٧** لمریز کال کې هېواد ته راستون شو چې له راستنېدو سره سم د کابل پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي استاد او بیا د همدې پوهنځي مشر وټاکل شو. په **١٣٤٢** لمریز کال کې د کاپیسا ولایت والي وټاکل شو او یو کال یې دغه دنده پر مخ یوړه. په **١٣٤٧** لمریز کال په سویلي آلمان کې کلتوري مشر وټاکل شو. په **١٣٤٧** لمریز کال کې یو ځل بیا فرانسې ته لاړه او د مونپې پلیه له پوهنتون څخه یې د ادبیاتو او فلسفې په برخه کې خپله دوکتورا واخیسته.
له **١٣٤٧** لمریز کال نه تر **١٣٥١**هــ ل کال پورې یې د دویم ځل لپاره د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو په پوهنځي کې د استادۍ دنده غوره کړه او په همدې دوره کې د پوهنځي انتخابي مشر وټاکل شو.
په **١٣٥٣**هــ ل کال کې د افغانستان د تاریخ ټولنې مشر شو. په دې ټولنه کې له درې کلنۍ چوپړ (خدمت) وروسته تر **١٣٥٨** لمریز کال پورې د ژبو او ادبیاتو په پوهنځي کې په تدریس ورکولو بوخت و او د فلسفې ښوونه یې کوله.
نوموړي د ثور له کودتا څخه وروسته په ګوښه ګېرۍ کې شپې ورځې تېرولې او کله چې روسانو د **١٣٥٨** لمریز کال د مرغومي په شپږمه نېټه په افغانستان برید وکړ مجروح صاحب پاکستان ته کډه شو. هلته یې د افغانستان اطلاعاتي مرکز په نامه یوه فرهنګي اداره پرانیستله. دې ادارې د افغانستان له حالاتو د نړیوالو په خبرولو کې ډېر مهم رول ولوباوه.
پوهاند مجروح په پښتو، دري، عربي، انګلیسي، فرانسوي او جرمني ژبو پوهېده او په همدې ژبو یې لیکنې کولې.

په پای کې دغه د هېواد لوی او غوره شخصیت او د روسانو پر وړاندې د فرهنګي ګواښ او مبارزې یو سر لاری او مخکښ په ۱۳٦۷ لمریز کال د سلواغې په میاشت کې د نامعلوموکسانوله خوا په ناځوانمردانه ډول د جمعې په شپه د خپل دفتر تر مخه په پېښور کې شهید کړای شو.

پوهاند مجروح د خپل ویاړلي ژوند په بهیر کې یو لړ علمي، سیاسي او ادبي لیکنې کړي دي. د هغه چاپي آثار په لاندې ډول دي.

۱– د دوکتورا تېزس په فرانسوي ژبه:

۲– د جبر او اختیار ډیالکتیک په پښتو ژبه

۳– اژدهای خودي ۱–۲–۳–۴ دفترونه.په دري ژبه

۴– د ځانځانۍ ښامار. په پښتوژبه

۵– د مور پیغام.نظم

٦– دښمن وپېژنئ.

۷– نا آشنا سندرې.د شعرونوټولګه

۸– صوفي او نوې دنیا په پښتو ژبه

او یو شمېر نورې خورې لیکنې چې وخت په وخت په مطبوعاتو کې خپرې شوي دي.

اروا دې ښاده وي.

یادونه :دپوهاند مجروح پورتني آثار چاپ شوي. ښاغلی ښوونکی کولای شي دغه کتابونه پیدا اوګټه ورځني واخلي.

## لسم لوست

**د تدریس وخت**: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | عروضي نظمونه | |
| **دزده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د نظم په معنا او مفهوم به وپوهیږي.<br>– د عروضي یا دیواني نظمونو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>–د عروضي نظمونو د ډولونو په هکله به خبرې وکړای شي.<br>– د لوست اړوند پوښتنو ته به مناسب ځوابونه ووايي.<br>– د عروضي نظمونو په اړه به څو کرښې له بېلګو سره ولیکلای شي.<br>– متن به سم او روان ولوستلای شي اودنظمونوله لیکلوسره به یې مینه پیدا شي.<br>– په متن کې راغلي شعرونه به سم ولوستلی شي او په مفهوم به یې پوه شي. | |
| **د تدریس لارې** | پوښتنه او ځواب، ډله ییزکار، یو کسیزکارلیکل اولوستل. | |
| **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، تخته، تخته پاک، د امکان په صورت کې اړوند کتابونه او کمپیوټر او انټرنېټ ته لاس رسی. | |
| **د ارزولو لارې او وسیلې** | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، څارنه، د پوښتنې او ځواب ارزونه، او د ښوونکي د یادداشت کتابچه. | |
| **د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | سلام اوسترې مه شي، د حال او احوال پوښتنه،له تېر لوست څخه پوښتنه او بیا په نوي لوست پیل کول. | ۴ دقیقې |
| **د انګېزې رامنځته کول** | ښاغلیه ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ. تاسې کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري وکړئ!<br>– آیا پخوا مو د عروضي نظمونو په هکله څه شی اورېدلي ؟<br>– تاسې د دیواني نظمونو په هکله څه معلومات لرئ؟<br>– د عروضي نظمونو کوم ډولونه پېژنئ په اړه یې خبرې وکړئ؟ | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن په پټه خوله ولولي. بیا دې څو کسه په خپل وار متن په لوړ غږ ولولي او نوردې ورته غوږ ونیسي. | – زده کوونکي متن په پټه خوله له ځانه سره وايي. بیا څو زده کوونکي متن په لوړ غږ لولي او نور خپل متن څاري. | |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د لوستل شوي متن د مطلب په اړه پوښتنې وکړي. | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته مناسب ځوابونه وايي. | |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د نوي لوست د مفهوم په اړه په ټولګي کې خبرې وکړي. | – زده کوونکي د نوي لوست د مفهوم په اړه خبرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| – څو زده کوونکي دې په وار سره په قصیده، غزل، مثنوي، او ترکیب بند باندې خبرې وکړي اوښوونکی دې د اړتیا په وخت کې د هغوي غلطۍ اصلاح کړي. | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم هر یو په وار سره په قصیدې، غزل، مثنوي، او ترکیب بند باندې خبرې کوي او خپلو تېروتنو ته ځیر کېږي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په متن کې راغلي شعرونه په وار سره ولولي. یو زده کوونکی دې د یو شعر مفهوم او بل دې د بل شعر مفهوم په خپلو خبرو کې څرګند کړي. | – زده کوونکي په متن کې راغلي شعرونه په وار سره لولي اوهر یو په خپلو خبرو کې د شعر مفهوم څرګندوي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي او وړ زده کوونکي دې وستايي.<br>• په پښتو ژبه او ادب کې کوم ډول نظمونه پېژنئ؟<br>• مشترک نظمونه کوم دي؟<br>• د مشترک نظمونو (عروضي) او ملي نظمونو تر منځ توپیر څه دی؟ | – زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته مناسب ځوابونه وايي. |
| – زده کوونکي دې په وار سره په دې هکله خبرې وکړي چې په لرغونې دوره کې کومو شاعرانو له دغو شعرې ډولونو څخه کار اخیستي؟ | – په دې اړه زده کوونکي د لرغونې دورې د شاعرانو د شعرونو اوډولونو په اړه خبرې کوي. |
| – لوستل شوی متن په څو شفاهي پوښتنو سره ارزیابي کړئ. | ـ زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته اړوند ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو په لومړی او دویم درسي ساعت کې په خپله خو ښه او په دریمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده وسپاري. | – زده کوونکي دکورنۍ دندې موضوع لیکي او په کور کې یې بشپړوي. |

**د ستونزمنوبرخو روښانول:**

**قیام الدین خادم:** د پښتو ادب په اوسنۍ دوره کې پنځه ادبي ستوري (حبیبي، بینوا، رښتین، الفت او خادم) دي چې له دغې ډلې څخه استاد خادم هم د استادۍ درجې ته رسیدلی دی. دوی نه یوازې ادبي، تاریخي، اقتصادي، ټولنیز، ژبني، فولکلوري او نور علمي مسایل لیکلي او چاپ کړي دي، بلکې ډېر پښتنانه ځوانان یې په دې لړ کې روزلي دي. استاد خادم د پښتو ژبې خدمتګار، پوخ لیکوال، ښه شاعر، نومیالی ادیب او د لوړو افکارو خاوند و. د ده ځینې کتابونه، لکه: پښتو کیلۍ لومړی، دویم او دریم، ټوک، معلم پښتو، د کوچنیانو اخلاقي پالنه، روهي ګلونه، پښتونولي، بایزید روښان او ډېر نور دي.

د پښتو ژبې اوادب ځلانده ستوری استاد قیام الدین خادم دملا حسام الدین زوی په ۱۳۸٦ق کال کې دکامې ولسوالۍ په یوه روحاني کورنۍ کې نړۍ ته سترګې غړولې وې.

**پیرمحمد کاکړ:**

دپښتوژبې وتلی شاعراود لوی احمد شاه بابا د دربار د روند غړی. لومړی په ږوب کې اوسیده اوبیا کندهار ته راغی. د نوموړي ژوند تر ۱۱۹٦هـــ ق پورې معلوم دی، ځکه چې خپل دیوان یې په همدغه کال پوره کړی دی. داسې معلومیږي

چې په ۱۲۰۰هـــ ق شاوخوا کې مړ اوپه کندهار کې خاوروته سپارل شوی وي. دمعرفة الافغاني په نوم یوکتاب یې هم لیکلی چې د پښتولومړنی گرامري کتاب بلل شوی دی.

**میاشرف:**

میاشرف په اصل کې دننگرهار ولایت د گردي غوث اوسیدونکی و .د احمد شاه بابا په وخت کې هند ته تللی و. یو پوه او نیک سړی و. نوموړی د پښتو ژبې ښه شاعر و. په خپل وخت کې یې پوره ادبي شهرت درلود. د پښتو ژبې یو وړوکی کتاب یې د عروضو په برخه کې لیکلی دی او په دې کار کې د نوښتگر حیثیت لري.

**اضافي معلومات:**

عروضي یا گډ(مشترک) نظمونه:

عروض د عربي ژبې اوڅه نا څه د فارسي ژبې په شعر کې دپلي کولو وړ پوهه بلل کېږي.دشعر د وزن د معلومولو په خاطردغه پوهه ۱۳پیړۍ وړاندې خلیل الدین احمدرازي فراهیدي د عربي نظمونولپاره رامنځته کړې ده. وروسې بیا فارسي، آذربایجاني، ترکمني، ازبکي او اردو ژبو هم په خپل وار سره په لږ تغییر سره منلي ده. یونانیانو نژدې دوه نیم زره کاله پخوا د (۳۲۲) ق کې عروضي نظمونه درلودل، خو په پښتو ژبه کې د عروضي نظمونو او ځانگړو وزنونو د راټولولو او عروضي ترتیب له پاره چندان کار نه دی شوی. په پخوانیودوروکې د پښتوژبې اوادب ځینوشاعرانو لکه د روښاني دورې میرزاخان انصاري ،دولت لواڼي اوځینونورو ډیره هڅه کړې ده اوخپل شعري کلام یې په عربي بحرونو برابر کړی دی .له هغه راوروسته په کلاسیکه دوره کې یعنې په دویمه مرحله کې د خوشحال خان بابا دادبي مکتب پیروانو اوپه خپله ده هم ډیره هڅه کړې ده چې عروضي کلام را منځته کړي .

**قطعه:**

دغه ډول څلوریزې ته ورته بڼه او فورم لري، خو د بیتونو شمېر یې د څلوریزې له دوو بیتونوڅخه نه زیاتیږي. څو پاړکي کیدای شي چې دوه بیته اویا له هغوزیات وي .بل توپیر یې دادی چې دپاړکي د سر نیم بیتي سره په قافیه کې یو ډول نه وي. د څلوریزې لومړی نیم بیتی بیا هم قافیه وي. قطعه مطلع نه لري. د موضوع له پلوه له هره ځایه پیل کیدای شي. د بیتونو شمیر یې تر څلورو پورې رسیږي. پام وکړئ یوې لنډې بېلگې ته:

د احساس دوزخ کې اوسم

په ارمان دیو جنت کې

مساوات دې برملا شي

شي انسان د ې په عزت کې

×××

**رباعي:**

څلوریزه هغه شعر ي ډول دی، چې له عربي ژبې څخه پښتوته را غلی دی .دا شعري ډول څلور مسرې لري له ځینواستثنایي حالاتو څخه پرته چې په هغه کې کیدای شي ددریمې مسرې یوه څپه د قافیه والو مسروله څپوڅخه کمه یا زیاته شي. په ټولیز ډول دټولو څلوراوړومسرو د څپو شمېر سره مساوي وي.دڅلوریزې لومړی بیت مقفی وي.دریمه مسره یې قافیه نه لري اود څلورمې مسرې قافیه یې د مطلعې قافیه خاري .د غزل په شان په څلوریزه کې هم ردیف اختیاري وي.

**غزل:**

په پښتو شاعرۍ کې غزل یو له هغو شعري چوکاټونو څخه دی، چې هر چا ته د منلو وړ وي. د پښتو ژبې زیاتره شاعرانو

د غزل په ډول کې زيات قلم چلولی دی. په همدې وجه په پښتو ژبه کې د ځينو نورو شعري ډولونو په انډول غزل زيات خوږوالی او ښکلا لري. کله چې دې شعري ډول ته د پښتنې چاپيريال زياتې انځورونې وردننه شوې، نو د غزل ښکلا او ظرافت نور هم زيات شو. په پښتو ژبه کې لومړنی شاعر چې دغه شعري فورم يې پښتو ادب ته رادننه کړ هغه اکبرزميناوري و. ولې هغه چا چې دې شعري ډول ته پښتنې شال ور په سر کړ هغه لوی خان خوشحال خان بابا و چې د غزل په يوه مسره کې يې توره او په بله مسره کې يې زلفې و ځلولې:

لکه خوشحال خان بابا چې وايي:

توره چې تيريږي خو گزار لره که نه

زلفې چې ول ول شي خو خپل يار لره که نه.

غزل خپله عربي کلمه ده او له همدې ژبې څخه دا شعري ډول پښتو ادب ته راغلی دی .له مانيز پلوه نورو هغو شعرونو ته چې غزليز، عشقي، يا غنايي مانيز بار لېږدوي هم غزل ويل کېدای شي. غزل هغه شعري چوکاټ ته وايي چې مطلع ولري، يعنې د سر بيت يې زياتره قافيه وال وي او د بل هر بيت دويمه مسره يې قافيه ولري او د مطلعې قافيه وڅاري .د بيتونو شمېر يې ټاکلی نه دی د ۷ نه تر ۱۵ پورې د ۵ نه تر لسو پورې او د ۵ نه تر ۱۵ پورې هم شته .کېدای شي له دغو څخه زيات يا هم کم بيتونه ولري. د څپو شمېر يې معمولاً سره برابر وي. په ځينو ځانگړو غزلو کې کېدای شي د غزل هغه مسرې چې قافيه ونه لري يوه څپه له قافيه والو مسرو څخه زياته شي. په پښتو ادب کې له ۷ څپيز څخه نيولې بيا تر ۱۵ څپيزو پورې غزلونه شته. قافيه په غزل کې بنسټيز توکی دی خو رديف اختياري دی.

**مثنوي:**

په عربي ژبه کې له مثنی څخه اخيستل شوې چې په پښتو ژبه کې د دوه يزې مفهوم افاده کوي. په عربي کې ورته مثنوي وايي، يو ځانگړی شعري ډول دی چې د هر بيت دواړه نيم بيتي يې سره هم قافيه او هم آهنگه برخه جوړوي. د بيتونو شمېر يې ثابت نه دی. په قافيه لرونکو شعرونو کې دوه يزه ترټولو ستر شعري ډول دی. شاعر کولای شي په دې شعري فورم کې خپل مقصد تر وروستي بريده بيان کړي، ځکه نو زياتره شاعران د لويو موضوعگانو لپاره د بيان په موخه دا شعري ډول خوښوي چې په پښتو ژبه کې دغه نوښت اکبر زميناوري کړی.

په دوه يزه کې که شاعر په يوه قافيه کې له ستونزې سره مخ شي نو بلې ته تللی شي. په دوه يزه کې هر بيت ځانته قافيه لري. کېدای شي ځينې بيتونه يې رديفونه ولري او ځينې يې ونه لري خو د ټولو بيتونو وزن گډ وي او د څپو شمېر يې سره مساوي وي .معنا دا چې دويزه مقفی گډ وزنه( مشترک الوزنه ) او د مساوي څپو لرونکی شعري ډول دی .د موضوع له پلوه په دې شعري ډول کې اوږدې او تاريخي کيسې، عشقي او حماسي داستانونه په خوږو الفاظو او هنري بڼه ترسيميږي.

په پښتو ادب کې خورا پخوانی دوه يزې لکه د تايمني، چې د سلطان غياث الدين د دربار شاعر يادولی شو.

همدا ډول په پښتو ادب کې د عبدالقادر خټک، حميد مومند، نعمت الله او دوست محمد خټک (يوسف زليخا، نيرنگ عشق، بحرالعلوم) مشهورې مثنوي گانې دي.

پاملرنه وکړئ د خوشحال خان بابا يوې دوه يزې ته:

مثنوي

له هر چاسره چې يو نفس قرين شوم

د هغو له خويه بويه په زړه شين شوم

زړه مې خوړ په هيجا نه شو په عالم کې

له عالمه سره زيست کړم په ډېر غم کې
څوک د سود له مخه څوک راسره يار شو
چې يې خپل مقصود پوره شو نو بيزار شو
چې يې مخ په مخ له تاسره وفا وي
په قفا(۱)درسره خير په سل جفا وي
چې يې ښه ګڼې هغه درسره بد شي
تل له تا سره په رخه په حسد شي
هر چې تا سره ياري کا، نه ياران دي
همګي واړه لړم دي يا ماران دي
زويه واړه د زړه رنځ د خپل بابا دي
لوښه کل د زړه ژورې د ماما دي
که دی يار دی که دی خويښ دی که دی ورور دی
د خپل ځان دی د خپل سود دی د خپل کور دی
تش د خولې لباس مباس دی سره کېږي
د هر چا خاطر خپل سود وته پړ کېږي
د راحت په وخت سل لافې د ياری کا.
د محنت ساعت چې راشي ويزاری کا
شاه جهان بادشاه څه لږ نه وو نمنځلي
چې په بند شوهمګي وو ځنې تللي
هی توبه!له دې جهانه تښتئ تښئ
په صحرا کې يک تنها ګرزيدی ګوښی

**قصيده:**

قصيده عربي کلمه ده چې د (قصد، استقامت، اتصال، سمون او برابری په معنا) کارېدلې ده(۱) په عربي ادب کې له اسلام څخه مخکې د جاهليت په دوره کې شتون درلود چې شاعرانو به د کعبې په دېوالونو ځړولې چې ورته (معلقات سبعه) يا اووه ځوړندې قصيدې ويلی شوي دي. قصيده په لغت کې د قصد، عزم، په معنا او په اصطلاح کې يو شعري (منظوم) تخليقی فورم ته وايي چې په پښتو ژبه کې ورته (بولله) ويل کېږي. د دې فورم د بيتونو شمېر له (۱۵) څخه تر (۳۵) او کېدای شي تر دې هم زيات وي. په وزن او قافيه کې به د شعر د مطلع لومړي بيت څخه تر پايه پيروي کوي. قصيده د شعري ډولونو څخه يو ډول دی، چې ډول ډول موضوعاتو ته ځانګړی کېدای شي: لکه ستاينه، ذم، غوښتنه، شکايت، ګيله، اعتذار مناظرې، مفاخرې، اخلاق، تاريخ، کيسې، ستاينې، سترې تاريخي پېښې او نور مطالب پکې هم ويل کېدای شي.(۲)

د ښې له مخې قصيده له څو برخو يا توکو څخه جوړه وي. د ساري په توګه: مطلع يا پيل، (تشبيب) ورپسې اصلي موضوع ته چې (ستاينه يا غندنه) به وي، بيا ورپسې تخلص يا ګريز او په اخر کې د دعايي برخه راځي. نوموړی ډول د ادب تاريخ په اوږدو کې بېلا بېلو برخو ته راکښل شوی دی، خو په لنډه توګه ويلی شو چې قصيده يو حماسي تغزلي

(اپیک – لیریک) په ډولونو پېژندل شوې ده (۳)
د قصیدې اصلي ریښه د (لیریکو) ډولونو په لړکې په زاړه یونان کې چې ورته، اوده – (oda) ویل کېده، چې بیا همدغه اصطلاح په لویدیځ کې هم منل شوی ده، پلټلی شو.

×××

په زاړه یونان کې دغه کلمه د شعر، نظم او ترانې په معنا ده. خو د پېړیو او زمانې په تېرېدو سره یې خپله ایتمولو ژیکه معنا له لاسه ورکړه. اوس د هغو شعرونو او نظمونو نوم شو چې تاریخي پېښې، ولسي شخصیتونه، د هغو ستاینې، غندنې، غوښتنې او نور ټولنیز مسایل په کې ویل کېدای شي.
کلاسیک قصیده ویونکې په یونان کې (Pindar) چې په (۵۰۰ق م )کې یې ژوند کاوه پېژندل شوی دی. دا تخلیقي یا ایجادي ډول په هر هېواد او ټولنه کې ځانګړی تاریخ لري.
د یوناني ژبې بل وتلی قصیده ویونکی هوراس پېژندل شوی دی. د هغه فورم د هوراسي په نامه سره یادېږي. په پښتو ادب کې هم قصیده ځانګړی ځای او ارزښت لري. چې په دې لړ کې د ښکارندوی غوري قصیده، خوشحال خان بابا قصیدې، اشرف خان هجري او تر هغو را وروسته د نورو شاعرانو قصیدې راپاتې دي، چې په پښتو ادبیاتو کې اوږد تاریخ لري.

**ترکیب بند:**

په دې ډول نظم کې بیتونه هم آهنګه او هم قافیه وي،لکه: د غزل په څېر په لومړی نیم بیتي کې د قافیې مراعات نه کېږي، خو په نورو بیتونو کې د بند تر پایه پورې یوه قافیه راوړل کېږي. په ترکیب بند کې په هر بند کې له ټاکلو څومقفی مسرو څخه پیروي کېږي.
د بیتو شمېر په هر بند کې سره مساوي او متحد الوزنه وي. د هر بند په پای کې بیل بیل مقفی بیت راوړل کېږي چې د بند د نورو مسرو سره به توپیر لري. د بندونو د مسروشمېر یو ټاکلی حد نه لري. ردیف او شمېر د بیتونو پکې اختیاري وي. له ترجیع بند سره یې توپیر دا دی چې په ترکیب بند کې د هر بند څخه وروسته راتلونکې مقفی بیت بدلون مومي. خو په ترجیع بند کې بیا دا قافیه یا همدا د بند وروستی مقفی بیت له هر بنده څخه وروسته تکرار راوړل کېږي یا له مطلع سره به هم قافیه وي.
په لاندې بېلګه کې د خوشحال خان خټک د یو ذوالقافیتین ترکیب بند د بندونو څو بیتونه راوړل شوي دي:

ترکیب بند

څه دبدو خوب و، چې مې ولیده سحر
سترګې مې رڼې کړې ناکرار شوم په بستر
پاڅېدم له کټه لکه خوړ شي د چاسر
هسې شان اوتر وم نه مې لیار لیده نه ور
لاړم تر مبرزه هسې راغلمه اوتر
غسل مې په ځای کړ په سنت د پیغمبر
درست خلک اوده وو واړو خوب کاوه خر خر
هېڅوک خبر نه وو اشرف خان مې کړ خبر

هرچې نصیحت و لکه بویه د پدر
ما په کتابت ورته ادا کړ مختصر
×××

د پای بیت:

کوز یې کړم له کوټه چې یې کښیوتم په جال
زر یې را په پښو کړې پنج سیرۍ بیړۍ کوتوال
(کلیات _ ۷۴۷ _ مخ)

**ترجیع بند:**
دا هغه ډول نظم دی چې لومړی څو بیتونه وویل شي بیا ورپسې یو قافیه وال بیت ورلوېږي او په دې ډول یو بند جوړوي.دغه شان بیا بل بند پیلیږي او بیا ورپسې همدا قافیه وال بیت تکراریږي. په ترجیع بند کې د هر بند لومړی بیت قافیه وال لکه د غزل په څیر او د بل هر بیت لومړۍ مسره یې بې قافیه وي او دویمه یې قافیه لري او د مطلعې قافیه څاري. د بندونو د بیتونو شمېر یې سره مساوي وي. ټولې مسرې یې یو وزن څاري. په ترجیع بند کې هم ردیف اختیاري دی. ځینې بندونه کېدای شي ردیفونه ولري او ځینې یې ونه لري.
**د خوشحال خان خټک له دیوان څخه یې بېلگه:**

**ترجیع بند**
ستا له لوریه که هزار جور وجفا وي
له عاشقه به په سل رنگه وفا وي.
ښه ماومنل چې ته بې حد زیبا یې
په جهان به کم څوک تا غوندې زیبا وي.
ولې خدای چې ښه جمال وچاته ورکا
نه په دا چې دی بې مهره کبریا وي
که قضا په ما زړه سوی کا هم به ومرم
که یو څو ورځې د جنگ وفتنې دا وي.
که تل ما سره غوغا جنگ وجدل کړې
خدای دې نه کا چې له تا به تله ځما وي.
ستا د در په خاورو پروت بېقدره ښه یم
په بل لوري که په تخت کښېنم ښه نه یم

**مربع:**
لکه څنگه چې له نامه یې څرگندیږي په دې شعري ډول کې څلور مسرې په هر بند کې راوړل کېږي. د لومړي بندڅلور واړه مسرې په خپل منځ کې په یوه قافیه وي. په دې شعري ډول کې ردیف اختیاري وي، ځینې وخت ردیف لري او

ځینې وخت په کې ردیف نه وي راوړل شوی. په نورو ورپسې بندونو کې بیا درې مسرې سره په یوه قافیه راوړل کېږي او څلورمه مسره یې بیا د لومړي بند قافیه تعقیبوي. که چېرې په لومړي بند کې ردیف راغلی وي نو تر پایه به په هر بند کې هغه راوړل کېږي.
بله دا چې د ټولو مسرو د څپو شمېر سره برابر وي، که چیرې یوه څپه په ځینو شعرونو کې زیاته یا کمه راځي هغه د ډېرو شاعرانو لکه: خوشحال خان بابا، عبدالرحمٰن بابا او همدا ډول د عبدالحمید بابا په شاعرۍ کې هم تر سترګو کېږي.

**بېلګه یې په لاندې ډول لولو:**

لومړی بند:

دربغه نوی عجب وخت د نو بهار وای
شګوفه هر رنګ ګلونه د ګلزار وای
لاس تر لاس سره نیولی ما او یار وای
په مزه مزه خواړه ویل تکرار وای

دویم بند یې:

یا وای ناست یار سره ګرځېدای په باغ کې
معطره وای د ګلو په دماغ کې
دوه په دوه مو سره راز وای په فراغ کې
هم مانع په دواړو سترګو ړوند اغیار وای

**مخمس:**
د پنځه ایز او څلوریز د شعري ډول توپیر سره نشته، خو یوازې یو بیت له هغه څخه زیات لري. داهم بندونه لري، د لومړي بند قافیه د ورپسې بندونو په پای کې پاتې په پنځمه مسره کې تکرار راوړل کېږي. دلته هم ردیف کله وي او کله نه وي. د پنځه ایز د هر بند څلور مسرې به په خپل منځ کې په یوه قافیه وي او ورسره به په ټولو بندونو کې د څپو شمېر او یو ډول آهنګ یا وزن ولري.
کېدای شي ځینې بېلګې له پورتنیو یاد شوو قاعدو سره په توپیر کې وي. په پنځه ایز کې د نیم بیتو شمېره ۵ او د بندونو ټاکلې شمېره اختیاری وي. کومه ټاکلې اندازه نه لري.

بېلګه یې د خوشحال خان بابا له کلیات څخه په لاندې ډول راوړو:

**لومړی بند:**

د هجران له لاسه ناست یم ویر ژړلی
لکه بت په غټو سترګو دم ختلی
بېهوده په صورت روغ په زړه نتلی
بېلتانه په مرګي حال یم رسولی
ربه راولې اشنا په سفر تللی

**مسدس:**

د شعري فورم درې بيتونه او شپږ مسرې لري. ټولې مسرې يې د يوې واحدې قافيې تابع وي.

د مخمس په ډول په هربند کې يې د لومړي بند قافيه تر پايه په شپږمې مسرې کې تکراريږي.

په دې فورم کې هم رديف اختياري وي. د بندونو ټاکلی شمېر هم پکې قيد شوی نه وي. د څپو شمېر پکې مساوي او له يوه وزن او آهنگ څخه پيروي کېږي.

پاملرنه وکړئ لاندې بېلگې ته:

**دويم بند:**

دوه دې وروځې دي مهينې      دوه دې زلفې عنبرينې

دوه دې شونډې شکرينې      نازنينې مه جبينې

سروې قدې تن سيمينې      جفا جويې دل آزارې

×××

**دريیم بند:**    تور گيسو دې مشک افشان دي      په سپين مخ دې پريشان دي

تار په تار پيچان پيچان دي      په هر تار يې اويزان دي

که شيخان که زاهدان دي

په هر چا دې وکړې چارې

(د خوشحال له کلياتو څخه ۹۵۱ مخ)

×××

۱_ کټارې يا کټاره: تېغ يا خنجر ته وايي يو هندي لفظ دی.

**اخځليکونه:**

ښاغلی ښوونکی کولای شي چې د دې لوست د لا زياتو معلوماتو لپاره له لاندې اخځليکونو څخه گټه واخلي:


۱_ د خوشحال خان خټک کليات د دوست محمد کامل په سريزه

۲– يون، پوهنمل محمد اسمعيل، د پښتو شعر هند سي جوړښت

۳– زيور، پوهاند ډاکتر زيورالدين، د پښتو ادب او سنۍ دوره

۴– دپښتو ادبياتو تاريخ ( لر غونې اومنځنۍ دورې ) سر محقق زلمی هېوادمل

۵_ عبدالحی حبيبي د پښتو ادب په تاريخ کې قصيده.

## یوولسم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | هنري نثر | | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– هنري نثر به وپیژني.<br>–د هنري نثراو عادي نثر په توپیر به وپوهیږي.<br>– متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– د هنري نثر د ځانګړتیاوو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د لوست اړوند پوښتنو ته به سم ځوابونه وویلای شي.<br>– د هنري نثر ډولونه به وپېژني.<br>– د پښتو هنري نثر په تاریخچه به وپوهیږي.<br>– د هنري نثر لیکوال به وپیژني او په راتلونکي کې به دهنري نثر له لیکوالۍ سره مینه پیدا کړي. | | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، د کتاب لوستل، ډله ییز کار کول، په یوازې توګه کار. | | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، قلم، د امکان په صورت کې کمپیوټر او انټرنیټ ته لاس رسی، تخته، تخته پاک او تباشیر. | | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، څارنه، د پوښتنې او ځواب ارزونه او د ښوونکي د یادداشت کتابچه. | | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه، د تېر لوست په اړه پوښتنې او بیا په نوي لوست پیل کول. | | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلیه ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ. تاسې کولای شئ چې دې ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو لري وکړئ!<br>– په تېرو ټولګیو کې مو د هنري نثر په هکله څه اورېدلي وو؟<br>– د هنري نثر کوم لیکوال پېژنئ؟ | | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د متن له لوستلو څخه وروسته لاندې پوښتنې ځواب کړي.<br>● په پښتو ژبه کې هنري نثر په کوم وخت او د چا له خوا پیل شو؟<br>● په کوزه پښتونخوا کې د هنري نثر وتلی لیکوال څوک و؟<br>● په افغانستان کې د هنري نثر لومړنی لیکوال څوک و؟<br>– ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن په | | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن لولي او پوښتنو ته لنډ لنډ ځوابونه ورکوي.<br>– زده کوونکي متن په لوړغږ لولي . | |

| | |
|---|---|
| لوړغږ ولولي. | |
| – ښوونکی دې څو زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د نوي لوست د مفهوم په اړه په ټولگي کې خبرې وکړي. | – زده کوونکي دې د نوي لوست د مفهوم په اړه خبرې کوي. |
| – ښوونکي دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د یو ښه زده کوونکي ځانگړتیاوې او صفتونه په څو کرښو کې ولیکي او بیا دې په وار سره په ټولگي کې واوروي. | – زده کوونکي د ښه زده کوونکي ځانگړتیاوې او صفتونه لیکي او په ټولگي کې یې لولي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د هنري نثر او ساده نثر تر منځ توپیرونه وښیي. او د تېر وتنې په وخت کې دې ښوونکی ورسره مرسته وکړي. | – زده کوونکي د هنري نثر او ساده نثر تر منځ توپیرونه ښیي. |
| – ښوونکي دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په خپله خوښه څوکرښې لیکنه وکړي او په ټولگي کې یې واوروي. | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونی سره سم په ټولگي کې څوکرښې له ځانه لیکي اوبیا یې په ټولگي کې لولي . |
| – ښوونکی دې لوستل شوی متن په څو شفاهي پوښتنو سره ارزیابي کړي. | – زده کوونکي مناسب ځوابونه وایي او خپله وړتیا څرگندوي. |
| – ښوونکي دې زده کوونکو ته د هرې ورځې دکورنۍدندې موضوع وټاکي او زده کوونکی دې د موضوع په اړه د ښوونکی لار ښوونې ولیکي. | – زده کوونکي دکورنۍ دندی موضوع له ځان سره لیکي او په کورکې پرې کار کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**فنون:** د فن جمع ده. صنعت ته هم ویل کېږي، د تکنیکو، وړتیاوو او قاعدو ټولگه او هم د هنر، لارې، طریقې، او ډول په معناوو هم استعمالیږي.

عواطف: د عاطفې جمع ده، چې معنا یې مهربانه، مهرباني کوونکی، زړه سوانده، مایل.

عاطفه: د عاطفې مفرد کلمه چې معنا یې مهرباني، شفقت، زړه سوی، د خپلوۍ او نژدېوالي مهر په معنا استعمالیږي.

**مولوي احمد:** د پښتو ژبې تکړه او پیاوړی لیکوال دی. (۱) د پېښور د تنگي اوسېدونکی دی. سربېره په نورو کتابونو د آدم خان او درخانۍ کیسه یې په نثر لیکلې ده. او په **۱۲۶۲هـ** ق کال کې له دې نړۍ څخه سترگې پټې کړې دي.

**مېر احمد شاه رضواني:** له نومیالیو ادیبانو څخه یو هم قاضي میر احمد شاه رضواني دی .رضواني هم د پښتو ژبې یو پیاوړی ادیب، قوي او تکړه لیکوال دی. په نثر او نظم کې لوی لاس لري. د پښتوژبې متخصص او د زیاترو پښتو زده کوونکو د پښتو استاد و. په انگریزي ژبه هم پوهېده او د شمس العلما لقب یې تر لاسه کړی و. رضواني په **۱۲۷۹هـ** ق کال د پېښور په اکبرپوره کې زېږېدلی دی. دوه مهم کتابونه یې د شکرستان افغاني او بهارستان افغاني په نومونو یادیږي .دا دواړه کتابونه په تعلیمي سلسله کې داخل او د ښوونځیو لپاره لیکل شوي دي.

**منشي احمد جان:** منشي احمد جان ددغې ډلې د وروستۍ برخې یو پیاوړی نومیالی ادیب او د پښتو ادب د آسمان یو روښانه او ځلانده ستوری دی. وایي چې یو پوه او فاضل سړی و. په پښتو کې د یوځانگړي فکر او مسلک څښتن و. د منشي احمد جان شعر کم لیدل شوی دی. د افغانستان تاریخ یې له انگرېزي ژبې څخه په خوږه پښتو ژبه ژباړلی. د قصه خوانۍ گپ او د( هغه دغه) په نوم دوه کتابونه هم لري.

**نثر:** په لغت کې پاشلو او تیتولو ته وایي او په اصطلاح کې هغه کلام دی، چې د وزن له قید څخه ازاد وي. نثر په بېلا

بېلو ډولونو وېشل شوی دی، نثر په لومړي سرکې په دوو لويو برخو وېشل کېږي:
۱– ساده نثرونه ۲– هنري او ادبي نثرونه
په ساده نثرونو کې ټولې علمي، ادبي، سياسي او ژورنالستيکي ليکنې او څېړنيز آثاراو ليکنې راځي، چې په ساده او روانه ژبه د فکر او نظر د څرګندولو او نورو ته د پوهې او معلوماتو دلېږدونې دېره ښه او اغېزمنه لاره ده.
خو هنري او ادبي نثرونه بيا ځانته خپلې ځانګړنې لري چې د هغو له مخې يې له عادي او ساده نثر څخه تـوپير کېـږي. اساسي او بنسټيزه ځانګړنه چې ادبي او ساده نثر سره بېلوي هغه هنريت يا ادبي هنري ارزښت دی. په هنري ادبي ليکنو يا نثر کې ليکوال د بېلا بېلو منظرکشيو، ټيپکو ځانګړتياوو، روحياتو، عاداتو، حالاتو د انځورولو او وړاندې کولو لپاره لـه خپل تخيلي ځواک څخه کار اخلي. ليکوال د تخيلي ځواک په مرسته او د ليکوالی د هنـر د مهـارتونو پـه وسـيله د منظرکشی او صحنې جوړونې چارې سرته رسوي. حالات يا واقعيتونه او پېښې په الفاظو کـې داسـې انځـوروي چـې لوستونکی يا اورېدونکی فکر کوي چې هر څه په خپلو سترګو ويني او ځان ورته په هماغه ځای کې شامل ښکاري. دا بيا د ليکوال په استعداد او فني وړتيا پورې اړه لري چې انساني رواني حالات د خلکو هيلې او غوښتنې، جذبات، عواطف او احساسات څنګه په الفاظو کې انځور يا راونغاړي او مقابل لوري (لوستونکي يا اورېدونکي) ته يې ولېږدوي اود هغـه پـه عواطفو کې خوځښت راولي. د هنري او ادبي نثرونو د بڼې له مخې دا لاندې ډولونه موږ ته معلوم دي: ۱– لنډه کيسـه ۲– ناول ۳– ډرامه ۴– رومان ۵– طنز ٦– تکل ۷– ادبي ټوټه ۸– سفرنامه (يونليک) ۹– ادبي راپورتاژ ۱۰– ادبـي ليکونه ۱۱– ادبي انځور ۱۲– فلمي سناريو او داسې نور چې دلته يې ځينې په لنډه توګه در پېژنو:
**۱ــ لنډه کيسه:** د نثري کيسو يو ډول دی، چې لنډه او داسې يو له بله سره له تړليو عناصرو څخه جوړه وي چې يـو د بل تر اغېزې لاندې وي. مو ضوع د خپلو حدودو په چوکاټ کې رانغاړي. بې اړتيا خبرې په کې نه ځـايېږي. د تـاثر او اغېزې يووالی په کې يوازينی شرط دی. په چوکاټ کې يې پلاټ (طرحه) کرکټر، تجسس او تلوسه، مکالمې، تخيـل، د کيسې پايله او نتيجه شامل دي.
**۲ــ ناول:** لغوي معنا يې نوی، تازه او عجيبه څيز دی او په ادبي اصطلاح کې هغې ادبي نثري کيسې يا داستان ته وايـي چې له لنډې کيسې څخه لوی او له رومان څخه لنډ وي، خو له لنډې کيسې سره دا توپير لري چې هم په کې پېښـې پـه بشپړه توګه بيانيږي او هم يې کرکټرونه زيات وي.
**۳ــ ډرامه:** د يوناني کلمې له ډراوڅخه اخيستل شوې چې د عمل او کولو معنا لري. له همدې امله د ډرامې د پېژنـدنې په لړ کې دغه کلمه په کولو، ښودلو تعبير شوې .په ادبي اصطلاح کې هغه اثر دی چې د خبرو اترو په بڼه ليکـل شـوی وي. يا په بله وينا: ډرامه د يوې ژوندۍ کيسې نوم دی چې ټول احساسات او جذبات په کې د حرکت او خوځښـدو پـه واسطه څرګنديږي او هره پېښه عملاً د سترګو پر وړاندې ښکاري. ادبپوهان ډرامايي وحدتونه( د وخت، ځـای، عمـل) وحدت د ډرامې د فن بنسټيز توکي بولي.
**۴ــ رومان:** فرانسوي کلمه ده. په ځينو فرهنګونو کې يې معنا خيالي داستانونه او په ځينو کې د مينې او محبـت کيسـې راغلې. په ادبي اصطلاح کې هغه کيسې ته ويل کېږي چې له ناول څخه اوږده وي. د ژوند ډېرې او بېلا بېلې خواوې پـه کې منعکس شوې وي او د بېلا بېلو پېښو انځور په ادبي قالب کې ځايوي.

**۵ــ ادبي ټوټه:** د هنري ادبياتو يو ځانګړی ډول دی، چې ادبپوهانو د منثور شعر په نوم هم ياد کړی دی. او دا ځکه چـې اصلا نثر دی خو شعري کيفيت لري. په دې ډول ليکنو کې د لوړې انشاء خيال ساتل کېږي او داسې رنګين الفاظ په کې نغښتي وي چې په بشري احساس او عواطفو ژوره اغېزه کوي.

**٦ــ طنز:** عربي کلمه ده چې لغوي معنا يې فرهنگونو ناز، کرشمه، پيغور او مسخره کول راوړي او په ادبي اصطلاح کې د هنري ادبياتو يو ډول دی. په ليکنه کې يې د ليکوال اصلي مقصد گوتنيونه وي، خو دا نيوکه د شوخۍ په بڼه او يا په بله وينا د ريشخند او تمسخر په جامه کې نغښتې وي

د وينا لحن او انداز يې په زړه پورې او د ټوکو ټکالو په شکل وي او زياتره وخت په کې پيښې سرچپه معکوس (مطــرح) کېږي. طنز په ريښتنې بڼه هغه ترخه خندا ده چې د ټولنې د خلکو په ناوړه اعمالو، عاداتو، اخلاقو او افکارو باندې کېږي.

**٧ــ ادبي ليکونه:** هغه ليکونه دي چې په ځانگړي هنري او ادبي بڼه ليکل کېږي. په دې ليکنو کې يو لړ مهــم انتقــادي، سياسي، فلسفي او ادبي مسايل ليکل کېږي. د ليکنې ژبه يې هنري او د تخيل رنگ پرې غالب وي .له اســتعارو، کنــايو، تشبيهاتو او نورو ادبي صنعتونو څخه په کې کار اخيستل شوی وي. ژبه يې خوږه او د ليکنې طرز يې دومره په زړه پــورې وي چې لوستونکي يې په لوستنه نه مړيږي.

**٨ــ ادبي راپورتاژ:** د هنري ادبياتو ځانگړی ډول دی. له عادي راپورتاژ سره چې يو ژورنالستيکي ډول دی جوت توپير يې دا دی چې په ادبي راپورتاژ کې د پېښې تعبير، تفسير او څېړل په ادبي او هنري ژبه شوی وي او هر څه په خــوږه هنــري ژبه نورو ته وړاندې کوي.

**اخځليکونه:**


١ــ هاشمي، محقق سيد محی الدين، ادب پوهنه ، داريک گرځنده اداره ،پيښور ،١٣٨١هــ ش کال

٢ــ هاشمي، سيد محی الدين، د ليکوالۍ فن،ميرويس کتاب پلورنځی ،١٣٨٢هــ ش کال.

## دولسم لوست

### د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| دمطالبو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د پښتو ادبیاتو لرغونې دوره | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– دپښتو ادبیاتو لرغونې دورې په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د پښتو ادبیاتو لرغونې مرکزونه به وپیژني.<br>– د پښتو ژبې د لومړي شعر او شاعر په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د امیر کروړ په شعر کې به د سوبو او بریو په اړه خبرې وکړای شي او شعر به په نثر واړولای شي.<br>– د پښتو ادبیاتو د لرغونې دورې د نورو نامتو لیکوالانو او شاعرانو په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– د پښتو ادبیاتو لرغوني منظوم او منثور آثار به وپیژني.<br>– د متن د پای فعالیتونه به په بشپړه توګه ځواب کړای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، په یوازې توګه کار او ډله ییز کار، لوستل او لیکل. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د امکان په صورت کې د پښتو ادبیاتو د لرغوني دورې د ځینو نامتو شاعرانو نومونه، انځورونه، کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر او قلم. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه، د تېر لوست څخه پوښتنې او بیا د نوي لوست د ښه پیل لپاره د یوې انګېزې رامنځته کول. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو او یا دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>– تاسي د ادبي دورو په هکله څه اورېدلي؟ خبرې پرې وکړئ.<br>– ستاسو په فکر د پښتو ادب لرغونې دوره کومې دورې ته وایي؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ــ له ټو زده کوونکو څخه په وار وغواړئ چې نوی لوست په مناسب غږ د نورو پر وړاندې ولولي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي او ښوونکی دې څارنه وکړي.<br>ــ ښوونکی دې د لوست هغه کلمې د تختې پرمخ ولیکي کوم چې معنا کولو او تشریح ته یې اړتیا لیدل کېږي. | ــ زده کوونکي په وار سره د نوي لوست متن په مناسب غږ لولي. نور ورته غوږ نیسي او که چېرې په لوستلو کې کوم زده کوونکی تېروتنه وکړي په سمو لوستلو کې به ښوونکی ورسره مرسته وکړي.<br>ــ زده کوونکي د هغو کلمو په تشریح او معنا باندې ځانونه پوهوي چې دوی پکې ستونزې لري. | |

<table>
<tr><td>ـ ښوونکی دې د پښتو ادبیاتو د لرغونې دورې د مرکزونو او د امیر کروړ او د هغه د لاسته راغلي شعر په اړه په لنډه توگه خبرې وکړي.</td><td>ـ زده کوونکي د ښوونکي د معلوماتو په اورېدو سره خپل معلومات بشپړوي.</td></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د پښتو ادبیاتو د لرغونې دورې د مرکزونو او د امیر کروړ او د هغه د شعر په اړه پوښتنې وکړي او د زده کوونکو ځوابونه دې په ځیر سره واوري.</td><td>ـ زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته مناسب ځوابونه وړاندې کوي، که چېرې د پوښتنې په ځواب ورکولو پوه نه شول، نو ښوونکی او یا بل زده کوونکی دې ورته ځواب ووایي.</td></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې د امیر کروړ شعر معنا او په مفهوم دې خبرې وکړي.</td><td>– زده کوونکي دې د امیر کروړ د شعر په معنا او مفهوم ځانونه وپوهوي.</td></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې هریو په یوازې توگه د امیر کروړ شعر په نثر واړو ي او بیا دې خپلې نثري لیکنې د نورو پر وړاندې ولولي.</td><td>– زده کوونکي په یوازې توگه شعر په نثر اړوي او بیا خپلې نثري لیکنې په وار سره لولي.</td></tr>
<tr><td>ـ د لرغونې دورې د نورو شاعرانو د ادبي خدمتونو په هکله معلومات وړاندې او د شعرونو بېلگې دې ورته معنا کړي.</td><td>– زده کوونکي دې د لرغونې دورې د نورو شاعرانو په اړه معلومات تر لاسه کړي.</td></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړي او د هغوی ځوابونه دې واوري او د نه ځواب په وړاندې کولو سره دې خپله ځواب ورکړي.<br>● د پښتو لومړی شعر څه وخت او د چا له خوا ویل شوی دی؟<br>● په لرغونې دوره کې پښتو قصیده ویونکی څوک وو؟<br>● د لرغونې دورې آثار تر موږ پورې د چا په واسطه رارسیدلي دي؟<br>● د لرغونې دورې کومې ښځینه شاعرانې پېژنئ؟</td><td>– زده کوونکي په وار سره پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>– خپله وړتیا د ځوابونو په ورکولو کې ښیي.</td></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې د زده کوونکو یوې ډلې ته د لرغونې دورې د شاعرانو نومونه، بلې ډلې ته دې د پښتو ادب اړیکې له نورو ژبو سره په څو کرښو کې ولیکي؟</td><td>– د زده کوونکو دواړه ډلې دې د خپلې سپارل شوې دندې په اړه لیکنې وکړي او بیا دې په وار سره په ټولگي کې واوروي.</td></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په متن کې عام او خاص نومونه پیدا او د تختې په مخ یې ولیکي.</td><td>– زده کوونکي په ځانگړې توگه په متن کې عام او خاص نومونه پیدا او د تختې په مخ یې لیکي.</td></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې یو ځل بیا د لوستل شوي متن د مهمو برخو لنډیز زده کوونکو ته وړاندې کړي.</td><td>– زده کوونکي دې د متن لنډیز ته غوږونیسي.</td></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وسپاري.</td><td>– زده کوونکي سپارل شوې کورنۍ دنده په خپلو کتابچو کې لیکي او په کور کې یې ترسره کوي.</td></tr>
</table>

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

ادب: (۱) عزت، سرېتوب، پوهه، زيرکي، فضيلت

(۲) تميز، تهذيب، تعظيم

(۳) حيا، پرده

(۴) تربيت، پالنه

ادب جمع يې ادبيات، ادبيات هغه ليکلي آثار، چې هنري ارزښت ولري ادبيات بلل کېږي .

کروړ: (۱) کلک، سخت، غښتلی

**غور:** زموږ د گران هېواد يو ولايت دی. مرکز يې چغچران دی. غور يوه غرنۍ سيمه ده چې د لويو غرونو، خوړونو، درو او غونډيو څخه جوړه ده. ولسوالۍ يې شهرک، تولک، غور وتيوره، پساوند او لعل وسرجنگل دي. يوه ولسوالي يې ساغر نومېږي. غور په تاريخي دورو کې ډېر مشهور دی او د غور د پاچاهانو مرکز و.

**شنسب:** (شين اسپ) د غور، سوري شاهي کورنۍ د يوه مشر نيکه نوم دی، چې د حضرت علی(رض) په زمانه کې مسلمان شوی او د غور پاچا منل شوی و. امير پولاد سوري د همدغه شنسب زوی و.

**خراسان:** مرکبه کلمه ده، چې (خُر) د لمر او (اسان) د ځای معنا ورکوي. چې مفهوم يې شرق، ختيځ،له هغه ځای څخه چې لمر راخيژي يا مطلع الشمس. دغې کلمې د دويمې زيږديزې پېړۍ څخه وروسته ظهور کړی او د فارس د ساسانيانو په وخت کې (پنځمه ميلادي پېړۍ) هغو ځمکو ته خراسان ويل کېده چې د ايران په ختيځ کې پرتې وې لکه: مرو، بلخ، تخارستان، هرات، فوشنج، بادغيس، سيستان، او ماورالنهر چې وروسته د افغانستان ټولې خاورې ته اطلاق شو.

**منديش:** په غور کې د امير پولاد او د ده د کورنۍ د پاچاهۍ مرکز و.

**پوشنج:** په هرات کې د يوه ځای نوم دی.

**کسي غر:** د کسي غر، د سليمان د غرو لړۍ د پښتونخوا مشهور تاريخي غر دی. د کسي يادونه په پټه خزانه کې څو ځايه شوې ده.

**سليمان غر:** د پښتو په لرغونو اوسېدنځايونو کې يوه ډېره وتلې او تاريخي سيمه د سليمان د غرونو لمنې دي. د دې غرونو لمنې د شپږ سوو کيلو مترو په شاوخوا کې اوږدوالی لري او پښتانه له ډېرې لرغونې زمانې څخه تر اوسه په ښه تعداد کې د دغو غرونو په لمنو کې استوگنه لري. د دغه غره نوم په ځينو تاريخي آثارو کې د کسي غره په نامه هم راغلی دی او د سويلي پښتونخوا، بلوچستان، دېر او د کندهار د شاوخوا خلک اوس هم د سليمان غرونه د کسي غره په نامه يادوي.

**ريگويدا:** د آريايانو يو مذهبي کتاب دی. په دې کتاب کې مذهبي سرودونه راغلي دي.

**اوستا:** دزردشتيانو سپېڅلی کتاب دی، چې څو برخې لري: گاتا د اوستا يوه برخه ده چې پر سرودونو مشتمله ده. يسنا(دمذ هبي تکاليفوجونگ)، ونديدا(دبدعملو خلکو ضد قوانين) خو د اوستا (مخصوصې دعاوې) ځينې نورې برخې هم لري.

**چنگيز:** د چنگيز اصلي نوم تيموچين دی، په (۱۱۶۲) کال کې زيږيدلی دی. په۱۱۲۰کال کې د چنگيزپه نوم ونومول شو.

**تيمور:** تيمور دترغائی زوی دی. په ۱۳۳۳کې نړۍ ته ستر گې وغړولې. په اصل کې ترک دی.

**نادر افشار:** دنادر افشار اصلي نوم نادر قلي و. د امام قلي زوی و. په۱۶۸۸ کال په خراسان کې پيدا شوی او په

۱۷۴۷ کال کې وفات شوی.

**شیخ اسعد سوري:** شیخ اسعد سوري د محمد زوی و. چې په **۴۲۵ هـ** کال په بغنین کې مړ شوی دی، شیخ اسعد سوري په پښتو ژبه ډېر ښه او پاخه اشعار ويل.

**ښکارندوی:** ښکار ند وی غوري د غور و. پلار یې احمد نومیده. د پښتو ژبې یو پوخ شاعر او عالم سړی و. په غزني او بست کې یې ژوند کړی دی .

ملکیار غرشین: ملکیار غرشین د بابا هوتک زوی و. د پلار له مړینې څخه وروسته یې د قوم د مشرتابه پګړۍ په سر کړه. نوموړی ډیر غښتلی سړی و. په جګړو کې به له څوتنو سره جنګیده.دغه پښتون بابا هم په پښتو کې ډېر خوند ور او پاخه شعرونه لري.

**شیخ تیمن:** شیخ تیمن د شیخ کاکړزوی و. په غورکې اوسیده . شیخ تیمن په پښتوژبه کې ډیر پاخه اشعار ویلي دي. نوموړی یو زاهد عالم او ولي سړی و، شیخ تیمن د علاء الدین حسین سام په زمانه کې وفات شوی دی.

**شیخ متي:** شیخ متي د عباس زوی، عباس د عمر زوی او عمر دخلیل زوی ، خلیل دغوریا، غوریا دکند ابن خرښبون زوی و، چې د حضرت سړ بنی قدس الله له زامنو څخه و. شیخ متي قدس الله په **۶۲۳** هجري کال کې زیږیدلی او د **۶۵** کلو په عمر د ترنک پرغاړه وفات شوی دی. نوموړی په پښتو ژبه ډېر پاخه اشعار لري. دغه یو زاهد او پر هیزګاره سړی و.

**لرغوني پښتانه:** دغه کتاب د شیخ کته یو ډېر ارزښتمن کتاب دی.

**شیخ رضي لودي:** شیخ رضي لودي د شیخ حمید لودي وراره و. کله چې حمید لودي په ملتان کې پاچا شو، نو شیخ رضي لودي یې پښتو نخوا ته ولیږه چې دهغه ځای خلک د اسلام دین ته دعوت کړي. شیخ رضي لود ي دوه کاله د کسي په غره کې وګرځېد او هلته یې ډېر خلک مسلمانان کړل.

**اضافي معلومات:**

د پښتو ادبیاتو لرغونې دوره له دویمې هجري پیړۍ څخه تر لسمې پیړۍ پورې دوام کوي. د دې دورې آثار د پښتو په درو لویومرکزونوکې (غور، کسي غر، او ملتان) رامنځ ته شوي دي. دا څرګنده او ښکاره خبره ده چې هره ژبه او ادبیات د زمانې د **تغیراتو** تابع ده.

د دې **تغیراتو** مهم توکي(زمانه، چاپیریال، حکومت، سیاست او مذهب ګڼل کېږي. یا د هرې زمانې ادب د خپل وخت د خیالاتو او افکارو استازی او ښکارندوی دی، چې په دې ترتیب هره دوره ځانته بېلابېلی ځانګړتیاوې لري.

لیدل کېږي چې د اسلام د راتګ څخه را په دېخوا د پښتو ادب څېره تر ډېره ځایه څرګنده ده او د اسلامي عصر ادبي متنونه د عربي لیک دود د رواج په وجه پاتې شوي دي.

د پښتو لومړنی شعر چې د پټې خزانې په واسطه تر دې وخته رارسیدلی دی، د امیر کروړ سوري دی چې په **۱۳۹هـ** کې ژوندی و.دا شعر مشهوره حماسي سندره ده چې ویاړنه یې بولي. داسندره د دویمې پیړۍ په سر کې ویل شوې ده. د پښتو ادب څېړونکو په اند داشعر دمعنا د ځواکمنتیا او پوخوالي له مخې لومړنی شعرنه، بلکې د یوې پخې او لرغونې ژبې د شعر بېلګه بللی شو. په دې حساب نو باید پښتو ادب څو پیړۍ تېرې کړې وي، چې دې پوخوالي ته رارسیدلی وي.

په دې وخت کې د پښتو ښځینه شاعرانې هم شته .بیابه په بشپړ ه توګه د دغې دورې د شاعرانو او لیکوالانو سره دروپېژندل شي. ښایي یادونه وشي چې پښتو ادب په خپل پخواني رنګ کې په پاشلي ډول مخ پر وړاندې تللی وي، چې د میاروښان تر دورې پورې رارسیدلی دي.

همدارنګه په لنډه توګه د دې دورې ځینې ځانګړتیاوو ته هم یوڅه اشاره کېږي! په لرغوني دوره کې شعرونو او نثر ونو یو

ځانګړی رنګ درلود، چې ژبه يې سوچه او سپېڅلې پښتو وه، چې اوس يې ډيرې کلمې مړې شوي او يوشمير يې په لږ تو پير سره تراوسه پورې ژوندۍ پاتې شوي او دود لري.

د دې زړو متنونو څخه داسې ښکاري چې پر پښتو باندې د نورو ژبو اثر هغه وخت ډير لږ او بيا وروسته په دې ژبې باندې د عربي، پاړسي ادب تاثير لويدلی دی اود هغه دليل روښانه دی. دموضوع له پلوه د پښتو پخواني آثار يو ځانګړی پښتني او سيمه ايزه بڼه لري.

د شکل له مخې په لرغونو آثارو کې په خپل ملي اوزانوبرابر آثار پکې ويل کېږي. د سياسي بدلونونو څخه هم اغېزمن شوی دي. لوی تاړاکونه او يرغلونه پر دې ځمکه باندې راغلي او غټ غټ سياسي، ديني او مذهبي بدلونونه په کې پېښ شوي، خو پښتنو په دغو بدلونونو کې د دين، فرهنګ او ثقافت له پلوه مثبت او نوي شيان منلي او خپله خپلواکي يې غوره بللې ده چې په دې توګه يې سياسي تسلط ته غاړه نه ده ايښې. که زور وورباندې راغلی نو بيا غرونوته ختلي او په دښمنانو يې لوی (کرکندې) ګرنګونه را ايله کړي دي، نو طبيعي ده چې پښتو ادب به هم په داسې طوفانونو کې کله طوفاني شوي هم دي.

**د پښتو ادبياتو د رامنځته کېدو لومړني درې مرکزونه:**

**غور:** غور دافغانستان يوه لرغونې او تاريخي سيمه ده، چې د پاچاهيو سلسلې پکې تېرې شوي دي اود دې سيمې پا چاهانو داسلام د سپېڅلي دين د خورولو په چارو کې هم لويه برخه درلوده. د پښتوپه لرغونو اوسيدنځايونو کې يوه هم د غور سيمه شامله ده چې دغور له سوريانو سربيره د پښتنو د ځينونورو قبايلو نسبت هم له دې سيمې سره ښکاره دی. د پښتنو په قبايلو کې يوه لويه قبيله د غوري يا غور يا خېلو پښتنوده، چې د تاريخي آثارو اونسبي شجرې د کتابونو د رواياتو له مخې د کندبن خرښبون بن سړبن په اولاده کې دغوري په نامه د يو تن ذکر راځي. دمخزن افغاني د روايت له مخې د دې سړي اصلي نوم شيخ ابراهيم و، خوڅرنکه چې په غور کې زوکړی و، نو ځکه د غوري په نامه مشهور او اولاد يې تـــر اوسه پورې غوري يا غورياخېلو په نامه ياديږي .په غوري پښتنو کې څلور لويې قبيلې شاملې دي .دولت يار، خليل، زيړاني او ځمکني، چې بيا دې هرې قبيلې ته نورې لسګونې پښتنې قبيلې او پښې منسوبې دي. د غور اوسني مرکز چغچران ختيځ ته اوس هم د دولت يار په نامه يو کلی شته چې د غوري پښتنو د دولت يار د قبيلې له نامه سره اړه لري.

داستاد پوهاند عبدالشکور رشاد د څيړنې له مخې دغه غوري پښتانه د چنګيز ۶۲۴ هـ کال مړ، له بريدونو څخه وروسته له غور څخه کوچيدلي دي او مخ په سويل او ختيځ راليږديدلي دي.

دغه دغور شاهي کورنۍ په تاريخونو کې شنسبيانو په نامه هم مشهوره شوې ده او دا ځکه چې د دې کورنۍ يو مشر نيکه شنسب (شين اسپ) نوميده چې د پلار نوم يې خرنګ و. دا شنسب د حضرت علیﷺ په زمانه کې مسلمان شوی او د غور پاچا منلی شوی دی. د شنسب زوی (اميرپولاد) نوميده چې دخپلو پلرونو نوم يې بيا را ژوندی کړ. هغه وخت چې ابو مسلم مروزي دبني اميه اميران له خراسان څخه وشړل او د بني عباس په پلوۍ ودريد، نو امير پولاد دغور لښکرې دابومسلم په مرسته وکوچولې او د ال عباس د پاچاهۍ د ټينګښت لپاره يې ډيرې هڅې وکړې. د اميرپولاد دپاچا هۍ مرکز دغور په مند ښ کې و. کله چې دی مړ کېده، نو پاچاهي يې خپلو زامنو ته وسپارله. امير کروړ د غور کلاوې، بالشتان، خيسار، تمران، برکوشک اونور ونيول. د ده پاچاهۍ دوه مرکزه درلودل. يو منديش او بل زمينداور و. امير کروړ ډير غښتلی پهلوان و، چې په يوازې ځان به له سلو تنو سره جنګيده. ده هم د عباسي دعوت په جنګونو کې ګډون درلود او ډيرې برياوې تر لاسه کړي. يو عادل پاچا و اوله دې سربيره ده به پښتو اشعارهم ويل. امير کروړ په ۱۵۴هـ. کال د پوشنج په جګړو کې مړ شو او پر ځای يې د ده زوی امير ناصر پاچا شو. دامير کروړ کوم شعر چې پټې خزانې راوړی دی، دادی:

زه يم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نسته
په هندو سندو پر تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نسته له ما اتل نسته
غشې د من مې ځي بر ښښنا پر میر ځمنوباندې
په ژوبله يو نم، يرغالم پر تښتېدنو باندې
پر ماتيدونو باندې له ما اتل نسته
زما دبريو پر خول تاويږي هسک په نمنځ او په وياړ
د آس له سوومې، زمکه ريږدي، غرونه کاندم لتاړ
کړم ايوادونه ويجاړ، له ما اتل نسته

زما د توري تر شپول لاندې، دی هرات وجرم
غرج وباميان وتخار بولي نوم زما په اودوم
زه پيژ ندوی يم په روم، له ما اتل نسته

پر مرو زما غشي لوني، ډاري دښن راځخه
دهري رود پرځنډو ځم تښتي پلن راځخه
ربي زړن راځخه، له ما اتل نسته

د زرنج سوبه مې د توري په مخسور وکړه
په باداري مې لوړاوی د کول دسور وکړه
ستر مې تربور وکړه، له ما ا تل نسته

خپلو وګړو لره لور پيروزينه کوم
دوی په ډاډينه ښه پالم، ښه يې روزنه کوم
تل يې ودنه کوم، له ما ا تل نسته

پر لويو غرو مې وينا دورمي، نه په ځنډ په تال
نړۍ زما ده نوم مې بولي، پر دريځ ستا يوال
په ورځو، شپو، مياشتو کال له ما اتل نسته

۲- کسي غر: دپښتو په لرغونو ځايونو کې يوه ډيره مشهوره تاريخي سيمه دسليمان دغرونو لمنې دي. پښتانه له ډيرې لرغونې زمانې څخه د دغه غرونو په لمنوکې ژوند کوي. د سليمان غرونه په ځينو کتابونواو تاريخي آثارو کې د کسي غره په نامه هم راغلي دي. د ډيرې لرغونې زمانې څخه دکسي غره په لمنو کې پښتانه ميشت و. دوی ځانته فرهنګي نومونه او

ادبيات هم درلودل. دغه غر په خپله ارته او پراخه لمنه کې ډير ستر اديبان وروزل او د پښتو د شفاهي ادب يوه لويه او بهانده چينه دهمدغو غرونو په لمنو کې د ميشتو پښتنو په سيمو کې شتون لري .د پښتو ادبياتو په دوو لرغونوتذکرو، (تذکروة الاولياء او پټه خزانه) کې د کسي غره په لمنو کې د ځينو اوسيدونکو پښتنو ځيني زاړه او پخواني شاعران خوندي دي، چې يو شاعر يې هم شيخ بيټنی (رح) دی.د بيټني د ژوند زمانه د دريمې پېړۍ شاخوا ټاکل کيدای شي.

يو مناجات يې موږ ته پټې خزانې را رسولی چې په لاندې ډول دی

لويه خدايه، لويه خدايه ستا په مينه په هرځايه

غر ولاړ دی درناوۍ کې ټوله ژوي په زارۍ کې

دلته دي د غرولمنې زموږ کيږدۍ دي په کې پلنې

دا وگړي ډېر کړې خدايه

لويه خدايه، لويه خدايه

شيخ اسماعيل او خرښبون هم د کسې د غرو په لمنو کې پښتانه شاعران دي.

۳ ملتان: دتاريخ ليکونکو او د تاريخي کتابونو له ليکنو څخه معلوميږي، چې دلومړيو اسلامي پيړيو په شاوخواکې پښتانه په کافي شمير د سليمان دغرولمنو او د پښتونخوا له سيمو د سند او پنجاب سيمو ته ورغلي او هلته ميشت شوي وو. ځينې تاريخي ليکونکي په دې عقيده دي چې په لومړيو اسلامي پيړيو کې د سند او ملتان د اسلامي حکومتو د ټينگښت يو دليل په هغو سيمو کې د پښتنو شتون وو. د پنجاب او سند سيموته کډه شوي پښتانه د خپلې زړورتيا له پلوه په دغې سيمې کې د راجاگانو او سيمه ييزو حکومتونو د پاملرنې وړ و. له همدې امله د پنجاب په لويديځو برخو اوملتان کې له اوسېدونکو پښتنو څخه شيخ حميد لودي د ۳۷۰ه کال په شاوخوا کې دلاهور او پنجاب د راجاگانو له خواله ملتان څخه نيولې ترلغمانه پورې د پرتو شاوخوا سيموواکمن وټاکل شو.

له شيخ حميد څخه وروسته د ده زوی نصر لودي او لمسي يې داود د ملتان د لودي کورنۍ واکمنان وو. او دکورنۍ پاتې شوني يې تر ۴۳۲ ه کال پورې هلته و.

**اخځليکونه:**

ښاغلی ښوونکی کولای شي چې د دې لوست په اړه له لاندينيو اخځليکونو څخه گټه واخلي:

_ هېواد مل، سرڅېړونکی زلمی، د پښتو اد بياتو تاريخ،( لرغوني اومنځنۍ دورې)

_ روهي، محمد صديق، د پښتو ادبياتو تاريخ.

_ محمد هوتک، پټه خزانه.

## دیارلسم لوست:

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ښځې او لنډۍ | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د پښتو شفاهي منظومو ادبیاتو(عامې سندرې او خاصې سندرې) به وپېژني.<br>– د لنډیو په جوړښت به وپوهېږي.<br>– د متن اصلي پیغام به درک کړي.<br>– د ښځینه لنډیو په تحلیل سره به په ټولنه کې د ښځو د ژوند په اړخونو پوه شي.<br>– د لنډیو په ډولونو او موضوعاتو به وپوهېږي او څو پښتو لنډۍ به دخپلې خوښې له مخې زده کړای شي.<br>– د متن د مهمو برخو لنډیز به په څو کرښو کې ولیکلای شي.<br>– د متن د پای فعالیتونه به په بشپړه توګه ترسره کړای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، په یوازې توګه کار، ډله ییز کار، لیکل او لوستل. | |
| دتدریس وسیلې او مرستندوی توکي | تخته، تخته پاک، تباشیر، کتاب، کتابچه او قلم. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه، له تېر لوست څخه څو پوښتنې او بیا د ښه پیل لپاره د یوې انګېزې رامنځته کول. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکیه! نو ی لوست په لاندې پوښتنو او یا دې ته ورته په نورو پوښتنو چې د نوي لوست سره تړاو ولري پیل کړئ!<br>– ویلای شئ چې د پښتو شفاهي منظوم ادبیات په څو برخو وېشل کېږي؟ نومونه یې اخیستلای شئ؟<br>– لنډۍ څه ډول کلام دی؟<br>– ستاسو په فکر ولې د ښځو برخه په لنډیو کې ډېره زیاته ده؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – د نوي لوست متن په څو زده کوونکو په وار سره ولولئ او د ستونزو په وخت کې ورسره مرسته وکړئ.<br>– له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په وار سره د متن په اصلي مفهوم باندې خبرې وکړي. تاسو د خبرو او معلوماتو نیمګړتیاوو ته پام وکړئ او زده کوونکي په ښو | – څو زده کوونکي په وار سره متن د کتاب له مخې په مناسب غږ لولي.<br>– څو زده کوونکي په وار سره د متن په اصلي مفهوم خبرې کوي. | |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
| --- | --- |
| الفاظو لکه: افرين، شاباس او.... وهڅوئ. | |
| ــ ښوونکی دې بيا متن په خپله ولولي او دستونزمنو برخو په اړه دې څرګندونې وکړي، چې زده کوونکو ته د متن ستونزمنې برخې اسانه او پرې پوه شي. | – زده کوونکي په خپلو کتابونو کې متن ته په ځير سره ګوري. بيا د متن د ستونزمنو برخو توضيح ته غوږ نيسي او ځانونه پرې پوهوي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره يوه يوه لنډۍ ولولي او بل زده کوونکی دې په معنا او مفهوم خبرې وکړي. ښوونکی دې د اړتيا په صورت کې ورسره پوره مرسته وکړي. | – يو زده کوونکی يوه لنډۍ لولي او بل زده کوونکی د لنډۍ په معنا او مفهوم خبرې کوي دا فعاليت په څو زده کوونکو ترسره کوي. |
| ــ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې له يو بل څخه د متن په اړه لاندې پوښتنې وکړي او يو بل ته ځواب ورکړي.<br>• لنډۍ د جوړښت له مخې څه ډول شعر دی؟<br>• لنډۍ په کومونومونو يادېږي؟<br>• لنډۍ په کومو سندرو کې راځي؟<br>• لنډۍ د چا له خوا ويل کېږي؟ | – دوه تنه زده کوونکي له يو بل څخه د متن د موضوع په اړه پوښتنې کوي او بل ورته ځوابونه ورکوي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې هر يو په ځانګړې توګه د متن د مهمو برخو لنډيز په څو کرښو کې وليکي. | – زده کوونکي په ځانګړې توګه د متن مهمې برخې په څو کرښو کې وليکي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په خپلو ډلو کې د لوستل شويولنډيو مفهوم په کتابچو کې وليکي. | – زده کوونکي د لوستل شوو لنډيو مفهوم په خپلو کتابچو کې ليکي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې په يوازې توګه لنډۍ په غور سره ولولي بيا پکې نومونه، صفتونه او فعلونه په نښه کړي او په وارسره يې په ټولګي کې ولولي. | – زده کوونکي په يوازې توګه لنډۍ په غور سره لولي. بيا پکې نومونه، صفتونه او فعلونه په نښه کوي او په وار سره يې لولي. |
| ــ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې د متن لنډيز په خپله ژبه بيان کړي. | – زده کوونکي د متن لنډيز په خپله ژبه وايي. |
| ــ کورنۍ دنده: ښوونکی زده کوونکو ته د پښتو په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه کورنۍ دنده ټاکي او په دريمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده ورسپاري. | – زده کوونکي سپارل شوې دنده په کورونو کې سرته رسوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

سېلاب، څپه، هيجا: هغه غږ چې د يوې کلمې يا د هغې د يوې برخې د تلفظ کولو په وخت کې له صوتي غړو څخه په يو وار راوځي، لکه: کتاب چې ک او تاب څپې لري.

**اضافي معلومات:**

**لنډۍ:**

لنډۍ په پښتو شاعرۍ کې داسې یو ځانګړی شعري ډول دی، چې د معنا د ځواک او لېږد له پلوه نه یوازې په پښتو شاعرۍ کې بلکې د نورو ژبو په شاعرۍ کې یې سارې نه دی لیدل شوی.

لنډۍ په پښتو ادب کې ځانګړی ځای او ارزښت لري. د فورم یا بڼې له مخې هغه موزون کلام ته لنډۍ ویل کېږي چې لومړۍ مسره یې (۹) څپې او دویمه مسره یې (۱۳) څپې جوړوي.

لنډۍ قافیه نه لري، خو د دویمې مسرې په پای کې یوه داسې کلمه راځي، چې د لنډۍ ټول آهنګ بشپړوي. هره لنډۍ باید دزور (۵) په واول پای ته رسیدلې وي. که چیرې د دوېمې مسرې په پای کی دا زور (۵) رانه شي، نو آهنګ یې نیمګړی پاتې کېږي.

په نورو ژبو کې د دې ډول شعر (البته په همدې وزن او آهنګ) څرک نه دی لیدل شوی او نه یې په ژباړه کې د دې اهنګ ساتل کېږي.

د لنډیو په رامنځته کولو کې ټول پښتانه برخه لري او د پښتني ولس ګډه پانګه ده، خو ښايي دا وواېو چې مېرمنو پکې زیاته برخه اخیستې ده او ډېرې لنډۍ د ښځو له خوا ویل شوي دي.

په لنډیو کې بېلا بېل مضمونونه لکه: خوشحالي، غم، اندیښنې، دوستي، د ژوند دردونه او رازونه په کې ځای شوي دي. د ټولنیز ژوندانه بېلا بېل اړخونه یې روښانه کړي دي.

پښتنې مېرمنې د خپل هېواد او ټاټوبي سره د زړه مینه ښکاره کوي. خپلو اولادونو، ورونو او خپلوانو ته یې داسې د میړانې او غیرت درس ورکړی دی.

د ګودر غاړه: کومه بله خبره چې د پښتو په فولکلوریک ادب او شعر کې خورا زیاته تکرار شوې اود پښتنو د ټولنیز ژوندانه یو اړخ څرګندوي. هماغه د ګودر د غاړې د کلال د منګي او یا د رود غاړه ده. ځکه مورږ وینو چې پښتنې پیغلې او مېرمنې سربېره د کور کار، پخلي او ډېرو نورو کارونو سره د ګودر څخه اوبه هم راوړي او دا کار تر اوسه پورې په ډېرو سیمو کې دود لري. هر مازدیګر پیغلې او مېرمنې منګي په اوږه اخلي او له ګودر څخه اوبه راوړي. په دې اړه هم ډېرې لنډۍ ویل شوي دي.

| | |
|---|---|
| د مازدیګر ګودره وران شې | په خندا درشم په ژړا درنه راځمه |
| چې مازدیګر شي زړه مې ښه شي | په ګودر جوړ شي د منګیو کتارونه |

د وطن په اړه:

| | |
|---|---|
| وطن جنت ډاګ یې ګلونه | زه کم نصیبه مسافره ترینه ځمه |
| وطنه ستا په مینه مست یم | ټول پښتانه دې په نامه سر ورکوینه |
| وطن د زېړو ګلو باغ دی | ما کبرجنې ورته شا کړه اوس ترې ځمه |
| هر چاته خپل وطن کشمیر دی | ماته کشمیر دي د کابل دښتې او غرونه |
| وطن زما د تن جامه ده | د تن جامه به لکه ګل غوندې ساتمه |
| وطن زما زه د وطن یم | پلیت قدم پرې د دښمن کله پریږدمه |
| ننګ په وطن ښايي جانانه | چې دې کوي عالم د تورې صفتونه |

**اخځلیکونه:**


۱ــ پښتو ــ پښتو تشریحي قاموس دریم ټوک

۲ــ پښتولنډۍ ،عبدالرو ف بینوا ،دانش خپرندویه ټولنه و۱۳۷۸هــ .ش کال

۳ــ د پښتو ټپې اوژوند ، سلما شاهین ، پښتواکاډمي پیښور،جدون پریس ۱۹۸۹م کا ل

## خوارلسم لوست

**د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه**

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | افضل خان او تاریخ مرصع | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>افضل خان خټک به وپیژني.<br>– د افضل خان خټک د تاریخ مرصع په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د افضل خان خټک د ادبي شخصیت په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– دافضل خان خټک د تاریخ مرصع د موضوعاتو په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– د نوو لغتونو په معنا به وپوهیږي اوپه جملوکې به یې وکاروي.<br>– د متن پوښتنو ته به مناسب ځوابونه وویلای شي.<br>– د افضل خان د مهمو ادبي خدمتونو په اړه به څو کرښې ولیکلای شي.<br>– د متن د پای فعالیتونه به په یوازې او ډله ییزه توګه تر سره کړای شي. | د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتې) موخې |
| | پوښتنه او ځواب،د کتاب لوستل، په یوازې توګه کار، ډله ییز او د لیکلو کار. | د تدریس لارې |
| | کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر او قلم راوړل. | دتدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه. | د ارزولو لارې او وسیلې |
| ۴ دقیقې | سلام او ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه له تېر لوست څخه څو پوښتنې او بیا په نوي لوست پیل کول. | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | ښاغلی ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ. اوهم کولای شئ په خپله خوښه دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو وکړې.<br>– کولای شئ د خټکو کورنۍ د یوه شاعر او لیکوا ل نوم واخلئ؟<br>– آیا د تاریخ مرصع په اړه څه معلومات لرئ؟ دا ارزښتمن اثر به د کوم لیکوال وي؟<br>– د افضل خان خټک نوم مو د مخه اورېدلی و، که مو اورېدلی وي خبرې پرې وکړئ؟ | د انګېزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| | ــ زده کوونکي لوست په چوپتیا له ځان سره لولي.<br>– څو زده کوونکي په وار سره متن په مناسب لوړ غږ لولي. | ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې نوی لوست په چوپتیا له ځان سره ولولي.<br>ــ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې پــه |

| وارسره متن په مناسب لوړ غږ ولولي. | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې متن بیا په خپله ولولي او په مفهوم او مطلب دې رڼا واچوي. | – زده کوونکي متن ته ځیر کېږي او په مینه ورته غوږ نیسي. |
| ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه په وارسره د متن په مفهوم او مطلب خبرې وکړي. | – څو زده کوونکي په خپله خوښه په وار د متن په مفهوم او مطلب خبرې کوي. |
| ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړي او دوی دې وهڅوي چې د پوښتنو د ځواب په ورکولو کې برخه واخلي. د نه پوهېدو په صورت کې له نورو زده کوونکو څخه د پوښتنو ځوابونه وغواړي او د اړتیا په صورت کې دې ښوونکی ځواب ورکړي.<br>● افضل خان خټک د کومې کورنۍ څخه و. پلار او نیکه یې څوک وو؟<br>● افضل خان خټک د کوم مهم اثر لیکوال دی نوم یې واخلئ؟<br>● د افضل خان خټک په کورنۍ کې کوم شاعران پېژنئ نومونه یې واخلئ؟<br>● د افضل خان له پلار سره څوک مخالف و او څه یې ورسره وکړل؟ | – زده کوونکي د افضل خان خټک د کورنۍ، آثارو، کورني مخالفت او د کورنۍ د شاعرانوپه اړه اړوندو سوالونو ته ځوابونه وایي. |
| ـ له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په وارسره د افضل خان خټک تاریخ مرصع د نثر نمونه په لوړ غږ ولولي او بیا دې د متن د مفهوم په اړه په خپله ژبه پرې خبرې وکړي. | ـ زده کوونکي دې په وار سره د افضل خان د تاریخ مرصع د نثر نمونه ولولي او په مفهوم د ې خبرې وکړي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په وارسره د افضل خان خټک د شعرونو نمونې په لوړ غږ ولولي او په مفهوم او معنا دې خبرې وکړي. | – زده کوونکي دې په وارسره د افضل خان خټک د شعرونو بېلګې په لوړ غږ ولولي او په مفهوم دې یې خبرې وکړي. |
| – له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د افضل خان خټک د ادبي خدمتونو په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په وار سره په ټولګي کې ولولي. | – زده کوونکي د افضل خان د ادبي خدمتونو په اړه څو کرښې لیکي او بیا یې لولي. |
| – له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د متن د مهمو برخو لنډیز په خپله ژبه بیان کړي. | – څو زده کوونکي دې د متن لنډیز چې په خپلې ورتیا یې تیار کړی ولولي. |
| ـ کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکو ته په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خو ښه کورنۍ دنده وټاکي او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده ورسپاري. | ـ زده کوونکي په کورونو کې سپارل شوې کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

دېوانونه: مفرد يې دېوان:دشاعر ټول شعرونه چې په يوکتاب کې دالفباء په ترتيب سره راغلي وي .

بياض: بياض د سپينوالي، صفاوالی په معنا دی

تشه کتابچه چې شاعر يې د شعرونو د ليکلو لپاره له ځانه سره ساتي.

چوغلي: غمازي، شيطاني، خبر ورنه.

التماس: غوښتنه، هيله.

سانسکرېټ: سانسکرېټ په لغت کې له دوو کلمو څخه جوړه شوې ترکيبي کلمه ده، چې سنس ژبه او کرېټ د اصلاح شوې معنا لري. سنسکرېټ يعنی اصلاح شوې ژبه. دا ژبه د هندو اريايي ژبو له ډېرو لرغونو ژبو څخه ګڼل کېږي.

پهلوي: پهلوي ژبه چې د اشکانيانو او ساسانيانو د دورې يوه ژبه وه.

حکيمان: حکماء د حکمت څښتنان يا د علم او پوهې څښتنان.

ساسان، ساساني لړۍ تر اسلام د مخه څلور سوه کلنه لړۍ ده چې د ساساني پاچاهانو دغه لړۍ د ساسانيانو کورنۍ ته منسوبيږي.

حکمت: علم او پوهه

هزل: تفريحي خبرې او حکايتونه، ټوکې

مطايبې: له چا سره ټوکې کول.

**اضافي معلومات:**

**افضل خان خټک او تاريخ مرصع:**

افضل خان د اشرف خان هجري زوی، د خوشحال خان خټک لمسی ، د شهباز خان خټک کړوسی، او د يحيی خان کودی دی، چې د نسب لړۍ يې ملک اکوړي ته رسيږي ، اوهغه د درويش محمد زوی و او نوره لړۍ يې کرلاني او بيا سړبن ته رسيږي.

د افضل خان خټک د پيدايښت کال ۱۰۷۵–۱۰۷٦ هــ کال ټاکلی شوی دی. سربېره په دې چې د خپل ټبر لوی خان او مشر و. د پښتو ژبې يو غښتلی ليکوال هم و. د خوشحال بابا د کورنۍ زياتو کسانو د تورې او سياست تر څنګ د پوهې او ادب جنډه هم پورته کړې او دوی په دغه ټولو خواوو کې د نامه او شهرت څښتنان وو.

افضل خان خټک په شعر کې دومره لاس نه درلود، خو د نثر په برخه کې يې زياتې هلې ځلې کړي دي او د دې ډګر يو تکړه او وتلی اتل ګڼل کېږي.

که څه هم دی د سبک له مخې د خوشحال خان بابا د مکتب او سبک لاروی دی، خو د مهمو کتابونو د تأليف په وجه يې لوړ نوم ګټلی دی.

نوموړي د ادبي هڅو تر څنګ له خپل تورزن نيکه خوشحال بابا سره په لومړنيو جګړو کې هم ونډه اخيستې وه، ځکه يې نيکه هم د ټولو لمسيو په پرتله د ده سره د زړه مينه درلوده. د خوشحال خان خټک او بهرام خان له مړينې څخه وروسته د خټکو په کورنۍ کې افضل خان خټک د مشرۍ جوګه و، نو ځکه ده ته د مشرۍ او سردارۍ پټکی په سر شو. نوموړي دغه مشري او سرداري تر يو شپېته کلونو پورې په ښه توګه وساتله او په پای کې په ۱۱۸۳ هــ. کال کې مړ شو، چې د مړينې په وخت کې يې عمر ۱۰۸ کاله و.

**تاریخ مرصع:**

تاریخ مرصع د افضل خان خټک یو مشهور او تاریخي اثر دی. دا کتاب د لفظ او معنا دواړو له مخې د پښتو د تاریخي نثر یو خوږ او لوړ کتاب بلل شوی دی. په دې کتاب کې د پښتنو عمومي تاریخ د یوسفزو او نورو پرګنو کوچ او لېږد، د خټکو دکورنۍ ژوند، حالات او نورې مهمې پیښې پکې بیان شوي دي. په پښتو ژبه کې یو باوري تاریخ ګڼل کېږي. تاریخ مرصع له اوږدې سریزې څخه وروسته ټول اووه دفترونه لري. لومړی او دویم دفتر یې د نعمت الله هروي د مخزن افغاني ژباړه ده. نور دفترونه د مؤلف له خوا زیات شوي دي. په دریم دفتر کې د شاه جهان یادونه ډېره ده. د پنځم د فتر یوه برخه یې د اخون درویزه له مخزن څخه نقل کړې ده. په ځینو ځایونو کې د خوشحال خان او ملا عثمان له خولې هم روایتونه شوي .شپږم دفتر د خټکو د نسب په اړه دی، چې زیات یې د خوشحال خان بابا له بیاض څخه اخیستي دي. په دې دفتر کې د خټکو جنګونه او د خوشحال بابا د بند بیان هم راغلی دی. اووم دفتر د پښتنو مشرانو بیان دی او د کتاب په پای کې یې د پښتنو قبیلې او جنګونه ښودلي دي. همدا وجه ده چې تاریخ مرصع د پښتو په تاریخي کتابونو کې زیات شهرت او نوم لري او یو پوره باوري اثر بلل کېږي.

۲–علم خانه دانش: دافضل خان خټک هغه کتاب دی، چې د پښتو په ژباړل شوو کتابونو کې له ګلدستې څخه وروسته دغه کتاب معیاري یادیږي. په علم خانه دانش او تاریخ مرصح دواړو کې افضل خان خټک د خپل نیکه خوشحال بابا د نثر طرز ساتلی دی. په دې دواړو کتابونو کې هغه د خپل نیکه خوشحال خان، اشرف خان هجري او د هغه وخت د نورو مشهورو شاعرانو او په ځینو ځایونو کې یې خپل شعرونه هم راوړي دي. په ځینې ځایونو کې د افضل خان او خوشحال بابا په نثر کې بېلتون ګران شي، ځکه افضل خان د خپل نیکه سبک تعقیب کړی دی.

**د تاریخ مرصع د نثر بېلګه:**

ذکر د خان علین مکان(۱) د پیریو چې په حال کې د طفولیت(۲) او شباب(۳) پرې تېر شوي دي او حق تعالی پرې اسان کړي دي. اول قرن(۴) یې دا و چې شپږ کلن او اووه کلن د سرای په (ګودر) چې ارتینې(۵)... وینځې(٦) زموږ وینځې ورغلې په دریاب کې، خان علین مکان په غاړه د سین ورته لامبل، له سترګو غیب شو. دریاب واخیسته یو تېر انداز یې یوړو. تر واړه کوزه دولۍ چې د خان تره ته هغه ناسته وه، د خان علین مکان د وربښمینو څونړو ځوکې یې په نظر کېوتې .په دا قصد چې د وربښمینو تارونه دي، اوبه یې وړي، راوبه کاږم چې لاس یې وروړو. زوریې کړو خان علین ( خوشحال خان) راووت. نعرې یې کړې. واړه خدمتګارې ورته راټولې شوې. سرونه یې شوکول. مخونه یې وهل. دی بې هوښه پروت و .ګېډه یې له اوبو څخه ډکه وه. ډېرې اوبه یې له نس او خولې څخه لاړې. بیا په شعور راغی. راویې خیست، کورته یې راوړ.

د پورته نثر د لغتونو روښانول:

۱– خان علین مکان: له دې کلمې څخه موخه خوشحال خان بابا دی.

۲– طفولیت: ماشومتوب. وړکتوب، کوچنیتوب.

۳– شباب: ځواني، د ځوانۍ د جوش پړاو.

۴– اول قرن: لومړی پېری، چې یوه پېړۍ سل کاله کېږي.

۵– څونړو: څنې، اوږده وېښتان، لوی وېښتان.

٦– ارتینې: د ارتینه جمع ده ښځې ته وایي.

۷– وینځې: غلامې ښځې، نوکرې.

۸– شوکول: شکول لکه وېښتان شکول.

**اخځليکونه:**


**۱ــ خټک، افضل خان، د نسب سلسله، تاريخ مرصع،ددوست محمد کامل مومندپه مقابله اوسريزه ،پيښور ،۱۹۷۴م کال**

**۲ــ رضا، محمد افضل، د پښتو نثر تاريخ.**

**۳ــ پوهاند، رښتين، صديق الله، د پښتو نثر هنداره.**

**۴ــ حسرت، ډاکټر محمد زبير، ادبي مقدمې**

**۵ــ پښتو پښتو تشريحي قاموس، دريم ټوک**

## پنځلسم لوست

### د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | پښتو لنډه کیسه | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– په لنډه کیسه او د لنډې کیسې په جوړښت به پوه شي.<br>– متن به سم اوروان ولوستلای شي.<br>– د لوست اړوند پوښتنو ته به مناسب ځوابونه وویلای شي.<br>– په پښتو ادب کې به د لنډې کیسې نور لیکوالان وپېژني.<br>– په پښتو ادب کې به د لنډې کیسې په تاریخي بهیر وپوهېږي.<br>– د لنډې کیسې لیکوالان به وپېژني.<br>– د لنډوکیسوله لیکلواولوستلوسره به یې مینه پیدا شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، د کتاب لوستل او ډله ییز کار. | |
| دتدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، قلم، تخته، تخته پاک او د امکان په صورت کې څو کیسه ییزې ټولګې. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د پوښتنې اوځواب ارزونه، او د ښوونکي د یادداشت کتابچه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه، له تېر لوست څخه څو پوښتنې او بیا د نوي لوست دښه پیل لپاره د یوې انګیزې رامنځته کول. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ او کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړئ!<br>– لنډه کیسه څه ته وایي؟<br>– آیا په تېرو ټولګیو کې مو د لنډې کیسې په نامه څه اورېدلي وو؟<br>– تاسې د لنډې کیسې په اړه څومره معلومات لرئ؟<br>– په پښتو کې کوم لیکوال پېژنئ چې لنډې کیسې یې لیکلي دي؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن په چوپه خوله ولولي. بیا دې څو تنه زده کوونکي په وار سره د متن یو یو پراګراف په لوړ غږ ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي. | – زده کوونکي متن په چوپه خوله لولي او څو زده کوونکي د متن یوه یوه برخه په لوړ غږولولي او نور ورته غوږ نیسي. | |
| – ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې د لنډې کیسې مهم ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي او په | – زده کوونکي د لنډې کیسې مهم ټکي په خپلو کتابچو کې لیکي او بیا پرې خبرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| وارسره دې په ټولګي کې پرې خبرې وکړي.<br>– ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکـــړي چـــې د لنډې کیسې د مفهوم په اړه په ټولګي کې خبرې وکړي اوور زده کوونکي دې وستايي. | – زده کوونکي د لنډې کیسې د مفهوم په اړه خبـــرې کوي. |
| – ښوونکي دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکـــړي او د هغوی ځوابونو ته دې پام وکـــړي. د ځینـــو نمیګـــړو ځوابونو لپاره دې ښوونکی په خپله بشپړځوابونه ووايي.<br>● د لنډې کیسې کوم لیکوالان پیژنـــئ؟<br>● په پښتوکې لنډه کیسه دلومړي ځل لپاره چا ولیکله؟ | –زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| _ ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې په لنډه کیسه کې نومځری پیدا کړي. | – زده کوونکي په لنډه کیسه کې نومځري پيـــدا او پـــه ټولګي کې پرې خبرې کوي چې کوم ډول نومځري دي؟ |
| – ښوونکی دې سپارښتنه وکړي چـــې زده کـــوونکي پـــه شفاهي توګه د لنډې کیسې په تاریخچې خبرې وکړي. | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم دلنډې کیسې تاریخچه په خپلو خبروکې بیانوي . |
| – کورنۍ دنده: ښوونکی دې دپښتو لوست پـــه لـــومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه کورنۍ دنده وسپاري په دریمه ورځ کې دې دلوست د پای کـــورنۍ دنـــدې زده کوونکوته وسپاري. | – زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوعګانې په کتـــابچو کې لیکي او په کورونوکې یې بشپړوي. |

**اضافي معلومات:**

عبدالروف بینوا د افغانستان د معاصرو شاعرانو او لیکوالانو څخه دی. بینواصاحب دملا عبدالله زوی په **۱۹۱۳** ع. کـــال په کندهار کې زیږیدلی دی. بینوا سر بیره په پښتو،عربي او فارسي ښه پوهیده. په نظم او نثر کې یی ډیر ې پخې لیکنـــې کړي دي.په لس ګونو کتابونه او په سلګونو مقالې یې چاپ او خپرې شوې دي. د هېواد په بېلا بېلوبرخو کې یې دنـــدې سرته رسولی دي. دژوند په ورستیو کې په لیبیاکې دافغانستان سفیر و. له هغه ځایه امریکا ته لاړ او په **۱۳۶۳** هـ.ل. کال هلته وفات او خاورته وسپارل شو.

**علامه پوهاند عبدالحی حبیبي:** حبیبي د پښتو ژبې په اوسنیو لیکوالو کې د لومړیتوب حق لري. هغه نه یوازې په پښتو بلکې په پارسي کې هم ستر لیکوال دی او په دواړو ژبو کې غوره او پاخه آثار او اشعار لري. په تېره بیا د ده تاریخي او علمي څېړنې ډېرې ګټورې او د ستاېلو وړ دي. ده ډېر څېړنیز علمي او تاریخي آثار لیکلي او د استاذۍ لوړ مقام ته رسېدلی دی. پوهاند عبدالحی حبیبي سربېره د خپلې مورنۍ ژبې څخه په پارسي، اردو او انګلیسي ژبو ډېر ښه پوهېده. په افغانستان کې د لنډې کیسی لومړنی لیکوا ل عبدالحی حبیبي دی. ښاغلی استاد د **۱۳۲۸**هـــ کال د ربیع الثاني په ۱۷ د پنجشنبې په ورځ د کندهار ښار د بامیزو په کوڅه کې زېږېدلی او په ختېه کاکړ دی .د ده مهم آثار دادي:

(۱) پښتو پښتونواله، سپېڅلې پښتو، پښتانه شعرا، د پښتو ادبیاتو تاریخ او ډیر نور دي.

**پوهاند حبیب الله تږی:**

د ګل دولا خان زوی، د محمد نبي لمسی، د پښتو په اوسنیو لیکوالانو کې د پوخ نثر او زړه راښکونکي شعر څښتن و. لیکنې یې زیاتره علمي او څېړنیز اړخ لري. په تېره بیا په ژبپوهنه کې یې زیاتې څېړنې کړي دي. پښتانه، معاصر افغاني

ادب او ډیر نورکتابونه یې لیکلي دي.
**سید راحت زاخیلي:** د سید فریح الله زوی ،د پښتو ژبې نامتو لیکوال او پیاوړی شاعر دی .د ۱۳۰۳هــ ق کا ل د پیښور د نوښار په زاخېل نومي کلي کې زېږېدلی. د راحت صاحب هغه ادبي آثار چې تراوسه چاپ شوي لکه: تاریخ افغانستان، نتیجه عشق (پښتو ناول) پښتو افسانې، سیف الملوک (پښتو نظم) راحت زاخیلي په پښتو ژبه کې د لنډې کیسې او ناول لومړنی لیکوال دی.
**محمد دین ژواک:** محمد دین ژواک د غلام محی الدین زوی د پښتو ژبې د پیاوړو لیکوالانو څخه شمېرل کېږي، چې هم یې نثر لیکلی او هم نظم ،خو د نثر برخه یې تر نظم خوږه او غښتلې ده. ژواک صاحب په ۱۳۳۷هــ ق کال په کندهارکې زېږېدلی او په امریکا کې وفات شوی دی. محمد دین ژواک خپلې ژبې او ادب ته تر خپلې وسې زیات خدمت کړی دی او زیات آثار یې لیکلي، چې دلته یې د څو آثارو نومونه اخلو:
- پښتو قرائت: د ښوونځیو د څلورم ټولګي لپاره چې د پوهنې وزارت له خوا چاپ شوی دی.
- د ژوند کتاب: د ده د ژوند خاطرات دي ،
- زما بیوګرافي
- د پښتو او انګریزي ژبې ګرامري مقایسه.
**میرا جان سیال:** د مرحوم حاجي میاجان کوډاخېل زوی په خټه مومند د ښه فکر څښتن، لیکوال او شاعر د ۱۳۳۰هــ. ش کا ل د لومړۍ خور په میاشت د مومندو د سیمې په کوډاخېلو کې زېږېدلی دی.میراجان سیال هم وفات دی. په پښتو کې یې زیات ګټور آثار لیکلي چې د بېلګې په توګه یې د یو څو آثارو نومونه اخلو:
۱- په پښتو پردو څه کړي دي؟
۲-د پښتونخوا افسانې
۳ -دروژې فلسفې
۴-غازي پښتون
۵ -مومند بابا
٦- پښتنې غرونه زما دېوان ....
**موسی شفیق:** د مولوي محمد ابراهیم کاموي زوی ،د پښتو ژبې پیاوړی لیکوال، تکړه شاعر او ښه سیاستپوه و. ده نه یوازې په پښتو ژبه لیکنې کولې، بلکې په دري او عربي ژبو ښه روان نثر لیکونکی و او په انګریزي ژبه هم ښه پوهېده. د ۱۳۸۰هــ ق کال د غبرګولي په پنځمه نېټه زېږېدلی دی.
په عدلي چاروکې یې د ماسترۍ سند له مصر څخه او په مقایسوي حقوقو کې یې د ماسټرۍ سند د امریکې له هیواد څخه ترلاسه کړی.
ښاغلی موسٰی شفیق نه یوازې سیاستپوه و، بلکې په ادبیاتو کې یې هم پوره لاس رسی درلود. دده زیاتې پښتو او دري مقالې او پښتو شعرونه د هېواد په بېلا بېلو ورځپاڼو او مجلو کې خپاره شوي دي .د داستانونو ټولګه یې د عبقریان په نوم په کابل کې ډېره پخوا چاپ شوې وه.
**ماسټر عبدالکریم**: د پښتو ژبې غښتلی لیکوال و. نوموړي د چار سدې د سیمې په اتمانزو کې نړۍ ته سترګې وغړولې، د منتظر خان زوی او د ډیلي په اسلامي جامعه کې یې د لوړو زده کړو بری لیک ترلاسه کړ. ماسټر عبدالکریم د نري رنځ د ناروغۍ له امله په ۱۳۳٦ هــ. لمریز کال له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې. د ده د خوږو کیسو یوه ټولګه چې (څولۍ ګلونه) نومیږي یو ادبي نثري شاهکار دی.

**سمندر خان (سمندر):** د پښتو ژبې یو نومیالی شاعر او غښتلی لیکوال دی. په خټه سلېمان خېل او د منصور خان زوی دی. په ۱۹۰۱ کال د نو ښار په بدرښو نو مي کلي کې زېږېدلی دی. زده کړې یې کله په ښوونځي او کله په ازاد ډول ترسره کړي. په نثر کې یې ترټولو خوږ او په زړه پورې کتاب (پښتنې) نومېږي.

**مېرمن زیتون بانو:** مېرمن زیتون بانو د سید سلطان محمد لور ده. په ۱۹۳٦ زیږدیز کال په پیښور کې زېږېدلې. د پښتو ژبې ښه نثر لیکونکې او شاعره ده. اغلې مېرمن بانو لومړنۍ زده کړې د اسلامیه کالج په عالي لېسه کې کړې دي.

هنداره ، ژوندي غمونه اونورې ډیرې داستاني مجموعې یې چاپ شوي دي .

یادونه: با ید ووایو چې پرته له زیتون با نو څخه نور ټول پورتني لیکوال و فا ت شوي دي.

---

**اخځلیکونه:**


بېنوا، عبدالروف، اوسني لیکوال، دویم ټوک

همدا اثر، کابل

همدا اثر ۵۸۸- ۵۸۹

هیندار ه .زیتون بانو ،پیښور چاپ

زرینې ځانګې ،حبیب الله رفیع ، د پښتواکا ډیمې خپرونه

# شپاړسم لوست

## دتدرس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطالبو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ويليام شکسپير | |
| دزده کړې (پوهنزي، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پاى کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– ويليام شکسپير به وپيژني.<br>– دويليام شکسپير د ادبي خدمتونو په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– دويليام شکسپير په هکله به نوروته معلومات وړاندې کړاى شي.<br>– دويليام شکسپير د ډرامو په اړه به خبري وکړاي شي.<br>– دمتن د پاى فعاليتونه به په خپلواک ډول ترسره کړاى شي.<br>– دمتن لنډيز به په خپله ژبه وويلاى شي. | |
| د تدريس لاري | پوښتنې او ځوابونه، د کتاب لوستل او ليکل. | |
| دتدريس وسيلی او مرستندويه توکي | کتاب، کتابچه، قلم، تخته، تخته پاک او د امکان په صورت کې د شکسپير د کتابونو د ليکل شوي چارت چمتو کول. | |
| د ارزولو لارې او وسيلې | شفاهی ارزونه، تحريری ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه او د ښوونکي ديادداشت کتابچه. | |
| دزده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام اچول، دحال او احوال پوښتنه، د تېر لوست څخه پوښتنې او بياد نوي لوست دښه پيل لپاره ديوې انگيزې رامنځته کول. | ۴ دقيقې |
| د انگيزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی نوی لوست په لاندې پو ښتنو پيل کړي او هم کولاى شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې، چې دنوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړي.<br>_ تاسې دنړۍ د اد بياتو کومه څيره پيژنئ؟<br>_ د ويليام شکسپير په هکله څه ويلاى شئ؟ | ٦ دقيقې |
| **د ښوونکی فعاليتونه** | **دزده کوونکو فعاليتونه** | **۳۵ دقيقې** |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې دلوست ټاکلې برخه په چوپه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.<br>– ښوونکی دې متن ولولي او بيادې د ويليام شکسپير په اړه معلومات وړاندي کړي.<br>– ښوونکی دې د ستونزمنوکلمو او لغتونوپه هکله له زده کوونکو څخه د کلمو معنا وپوښتي اووړ زده کوونکي دې په ښو کلموسره وستايي.<br>– ښوونکی دې د شکسپير ژباړل شوې منظومې په زده | – زده کوونکي دلوست ټاکلې برخه په چوپه خوله لولي او ستونز منې کلمې په نښه کوي.<br>–زده کوونکي متن ته گوري او غوږ نيسي. بيا د ويليام شکسپير په اړه معلومات تر لاسه کوي.<br>– زده کوونکي دستونزمنوکلمو اولغتونوپه معنا کولو کې برخه اخلي.<br>– زده کوونکي ژباړل شوې منظومې په وار لولي. | |

| | |
|---|---|
| کوونکو باندې په وار سره ولولي او په لوستلو کې دې ورسره مرسته وکړي. | |
| – ښوونکی دې د منظومې پر مفهوم څرګندونې وکړي. | – زده کوونکي د منظومې د مفهوم په اړه پو هاوی تر لاسه کوي. |
| – ښوونکی دې د شکسپیر د مشهوروتراژیدیو نومونه له زده کوونکو څخه وپوښتي او د نه پوهیدوپه صورت کې دې په خپله ښوونکی د هغو نومونه ووایي. | – زده کوونکي دمشهورو ترآژیدیو نومونه اخلي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکوته لار ښوونه وکړي چې د شکسپیر د شعر او نثرپه اړه خپل نظرونه ولیکي. | – زده کوونکي د شکسپیر د شعر او نثر په اړه خپل نظرونه لیکي اوپه ټولګي یې لولي . |
| – ښوونکی دې د شکسپیر د پیژندګلوۍ په اړه پوښتنې وکړي او دزده کوونکو مناسب ځوابونه دې واوري او ارزونه دې په د قیقه توګه وکړي . | –زده کوونکي د پوښتنو د ځوابونو په ویلو کې برخه اخلي اوخپله وړتیا ښکاره کوي . |
| – ښوونکی دې د لوست لنډیز بیان کړي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې دوی هم لنډیز بیان کړي. | – زده کووونکي د لوست دلنډیز د ویلوپه سیالۍ کې ونډه اخلي. |
| ـ ښوونکی دې د پښتو لوست په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه کورنۍ دنده ورکړي او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده زده کوونکو ته وسپاري. | – زده کوونکي دکورنۍ دندې موضوعګانې په کتابچو کې لیکي. |

**د متن دستونزمنو برخو روښانول:**

**تیاتر:**

دننداري ځای، د تماشا د ښودلوځای، هغه ځای دی، چې دلوبغاړو په وسیله ډرامې او نمایشنامې پکې ترسره کېږي.
په تیاتر کې دتمثیل له هنر څخه ګټه اخیستل کېږي .

**لاتیني ژبه:** د هندواروپایي ژبې له څانګې څخه ده .

**ډرامه:** د ډرامې کلمه دیوناني ژبې د (ډراو) له کلمې څخه مشتق شوې ده، چې معنا یې عمل دی .له همدې امله د ډرامې دپیژندلو په لړ کې دغه کلمه په کولو یا ښودلو هم تعبیر شوې ده.

**داستان:** د تخیلي یا ربښتیني پیښـــو بیان که نظم وي اوکه په نثر وي.

داستان تر ناول لنډ وي، داستان د حماسي ادب له ډولونو څخه دی، چې ځومختلفې پیښې پکې منعکس شوي وي اود هنري اثر د اتل په ټول ژوند باندې خبرې کوي .

د هغه دژوند مختلفې دورې لوستونکوته ور ښیي او د اصلي اتل څخه پرته ځوتنه نورهم د پیښو په بهیر کې شامل وي.

داستان په ملي نظمونوکې یو نظم دی، چې د مثنوي په څېر ویل کېږي. د هر یوه بیت د دواړو مسریو قافیه یوه وي اوپه ملي موسیقي کې ځانته آهنګ اوطرز لري.

**سبک:**
سبک د طرز، روش او لار په معنا ده. سبک هغه خاص دود یا طرز ته وایي، چې یوشاعر، هنرمند او لیکوال د هغه پربنسټ خپل احساس او ادراک بیانوي یا د افکارو د بیانولو خاص ډول دی، چې د هغه ادبي نثر د مشخصاتو په وسیله له ورته آثارو څخه رابیلیږي. د سبک اصلي معنا د سرو یا سپینو زرو ویلي کول او په قالب کې اچول دي. مجازاً د بیان او څرګندونې خاص دود ته ویل کېږي.

**اضافي معلومات:**
د ویلیام شکسپیر ژوند لیک او ادبي شخصیت:
د شکسپیر پلار جون شکسپیر نومېده. نوموړی د ډېرو ځمکو څښتن و. د ده مور (ماري رادون) د رابرت رادون لور وه، چې د استا فورد له ښکلو نجونو څخه وه. د جون شکسپیر سره د واده په وخت کې د ډېر میراث څښتنه وه. د شکسپیر د کوچنیوالي د ورځو په اړه هیڅ کوم کره معلومات نشته، مګر یوازې دومره ویلی شو چې دی په یوې بډایې او پېژندل شوې کورنۍ کې زېږېدلی او د ژوند د ښو شرایطو لاندې لوی شوی دی.
ویلیام شکسپیر په (۱۵۷۰) زېږدیز کال د استرادفورد په یوه منځني ښوونځي کې په زده کړه پیل وکړ او په دې مدرسه کې یې لاتیني ژبه زده کړه او په دې توګه یې د لاتیني ژبې د ډېر پیاوړي او ستر شاعر ویرژیل آثار ولوستل. د ویلیم شکسپیر کورنۍ د کاتولیک مذهب پیروه وه. د خلکو په منځ کې یې ډېر محبوبیت درلود. شکسپیر تر څوارلس کلنۍ پورې په ښوونځي کې زده کړه وکړه او وروسته یې په ځانګړې توګه په مطالعاتو پیل وکړ. وروسته له نولس کلنۍ څخه دشکسپیر د دندې په اړه هم بېلا بېلې نظریې موجودې دي، چې له هغه څخه ځینې په دې نظر دي، چې شکسپیر د عدلې وکیلانو په یوه دفتر کې په کار بوخت و. او ځینې تاریخ لیکونکي بیا په دې عقیده دي، چې هغه یو قصاب و. ځینې داهم وایي چې شکسپیر په یوې مدرسې کې کار کاوه. د ویلیام شکسپیر په ژوند کې چې کومه مهمه پېښه تېره شوې هغه دا ده چې په نولس کلنۍ کې په **۱۵۸۳** کال د یوې نجلۍ سره چې ان هات هویي د چارډهات هویي لور وه واده وکړ. آن هات په عمر کې اتلس کاله له شکسپیر نه مشره وه. د همدې ښځې نه یې دوه لوڼې سوزنا،جودیت او یوازې هامنت پیدا کړ، چې متاسفانه هامنت په یولس کلنۍ کې مړ شو. ده په **۱۵۹۴**زېږدېز کال کې لندن ته سفر کړی او د سفر په لومړیو شپو او ورځو کې د رابرت ګرین په واسطه چې د الیزابت د عصر دمعروفو او مشهورو ډرامه لیکونکو څخه و د تیا تر له هنر سره آشنا شو.
په **۱۵۹۲** کال په لندن کې د طاعون ناروغي پیدا شوه او په زرګونو انسانان یې ووژل. د تیاتر دروازې وتړل شوې. دا ځکه چې هنرمندان یې هم د طاعون ناروغۍ مړه کړي وو. پدې وخت کې شکسپیر یوازې پاتې شو، خو بیا هم آرام کښېنه ناست او خپل ادبي فعالیت ته یې دوام ورکړ. شکسپیر د دوشنبې په ورځ په **۱٦۱٦** زېږدېز کال له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې. د ده د شخصیت په اړه دومره ویلی شو چې دی د هنر او ادبیاتو ویاړلې څېره وه. شکسپیر سربېره په نمایشنامو اشعار هم ویلي لکه: (وینوس او ارونیس) (متک ناموس لوکرس) د حیرانتیا وړ خبره ده چې شکسپیر په خپل ژوند کې مشهور سړی و خو اوس د هغه په اړه ډېر معلومات نشته.
د شکسپیر آثار:
ویلیام شکسپیر د انګلستان د وتلو ډرامه لیکونکو څخه دی. هغه د تیاتر لپاره ستر خدمتونه کړي دي. شکسپیر د تیاتر سره ډېره مینه درلوده او د تیاتر په اړه یې پوره او بشپړ معلومات درلودل. د ده په آثارو کې د ظرافت، بشر دوستۍ او تواضع نښې نښانې لیدلی شو. د ده د ځینو آثارو څخه لکه هملیت، پنځم هانري او اوتلو څخه فلمونه هم جوړ شوي دي. شکسپیر هغه لیکوا ل دی چې د تراژیدي لیکوالو په سرکې راځي .د شکسپیر ټول آثار د نړۍ په بېلا بېلو ژبو ژباړل شوي

دي. د ده د آثارو ادبي خوا ډېره غښتلې او داستانونه یې نوښتي اړخ لري.د شکسپیر تلپاتې آثار دا دي.
۱– د عشق کوښښ بې ځایه دی.
۲– تیوس اندرونیکوس.
۳– د خطا وکمیډي.
۴– رومیو ژولیت.
۵– جون شاه.
٦– د سرکشې ښځې رام کول.
۷– ځلورم هانري.
۸– پنځم هانري.
۹– د هیڅ لپاره غال مغال.
۱۰ هرڅه چې وغواړې.
۱۱– دولسمه شپه.
۱۲– ښه دی هغه چې اخرېې ښه وي.
۱۳– ژول سزار.
۱۴– هملیت.
۱۵– اندازه په اندازه.
۱٦– اوتلو ۱۷ – لېرشاه ۱۸ – مکبث ۱۹ –انتوني کلوپاترا ۲۰ طوفان.
۲۱– وینزي تاجر.
۲۲– اتم هانري.
۲۳– د ژمي قصه.
۲۴– کوریو لانوس.
۲۵– سملاین.
۲٦– تاین انتي.
۲۷– پریکس.
۲۸– تروپلوسي وکرشیرا.

**د لنډې کیسې ناول او ډرامې ترمنځ توپیرونه:**

ناول، لنډه کیسه او ډرامه د هنري ادبیاتو بېل بېل ډولونه دي.سره له دې چې د جوړښت توکي یې تر ډېره حده سره یو دي، خود بېلګې په توګه په لنډه کیسه او ناول کې هم پلاټ (طرحه) کرکټرونه (اصلي او فرعي) مکالمې او منظر کشی، سپنس (تجسس، تلوسه، د کیسې پیل، اوج او پایله د جوړښت بنسټیز توکي دي. ډرامه هم له همدې توکو رغېدلې او جوړه شوې ده، خو په فني او مسلکي لحاظ یو له بله سره توپیر لري او دا هم د فورم (بڼې) د فن او تخنیک له مخې د ځانګړې لیکنې چوکاټ لري. دلته یې توپیرونه ښیو.

۱–په ناول او لنډه کیسه کې لیکوال له لوستونکوسره په خپل فني مهارت لوړتخیل لیږدولی شي. خو ډرامه د لیدلو څیز دی. کتونکي هر څه په خپلو سترګو ویني او لیکوال د خپل کرکټر د عمل او مکالمې په ذریعه تخیل په اغېزمنه توګه

کتوونکو ته ژر لېږدولی شي.

۲– د لنډې کیسې او ناول لیکوال په خپله د ژوند او ټولنې په هکله د ډرامې د لیکوا ل تنقیدي او تنبیهي نظریات لوستونکي ته وړاندې کولی شي، خو په دې هکله د ډرامې د لیکوال مجبوری بېلې دي او هغه په خپله خوله څه نشي ویلای، بلکې کرکټر ته ناست وي او هرڅه هغه وايي. هغه به له ټولنې څخه یوه پېښه، کیسه او یا کوم حقیقت را اخلي او هماغه شان به یې د خپلو کرکټرونو په عمل او مکالمه کې ورته ښيي.

۳– د لنډې کیسې او ناول سره د ډرامې تر ټولو ستر توپیر دا دی چې د ډرامې ټول دارمدار په مکالمه کېږي او بې له مکالمې څخه د ډرامې اټکل هم نه شي کېدای، خو په ناول کې کله کله مکالمو ته اړتیا پېښنه شي او په لنډه کیسه کې بیا دا اړتیا ډېره کمه وي.

**اخځلیکونه:**


۱ــ تاریخ ادبیات جهان ،پاکنرتراویک ،ژباړه عربعلي ر ضایي ،دویم جلد،تهران،۱۳۸۳هــ ش کال

۲ــ دریای گوهر، دکتر مهدي حمیدی، دویم جلد، تهران ۱۳۶۹هــ ش کال

# اوو لسم لوست

## د تدريس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليكونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | مېرمن سپينه | |
| **د زده كړې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتې) موخې** | د لوست په پای كې به زده كوونكي لاندې موخې تر لاسه كړي:<br>– د پښتو ژبې پښتنه شاعره سپينه ادې به وپېژني.<br>–د سپينې ادې په اړه به معلومات وړاندې كړای شي.<br>– د سپينې ادې شعربه سم او روان ولوستلای شي او په مطلب او مفهوم به يې خبرې وكړای شي.<br>– د سپينې ادې د وخت له تاريخي حالاتو څخه به خبر شي.<br>– په شعر كې به ځانگړي نومونه او ستاينومونه په نښه كړای شي.<br>– پوښتنو ته به مناسب ځوابونه وويلای شي.<br>– د متن د پای فعاليتونه به په سمه توگه ځواب كړای شي. | |
| **د تدريس لارې** | پوښتنه او ځواب، په يوازې توگه كار، ډله ييز كار د كتاب لوستل او د ليكلو برخه. | |
| **دتدريس وسيلې او مرستندوی توكي** | كتاب، كتابچه، تخته، تخته پاک، ماركر او قلم. | |
| **د ارزولو لارې او وسيلې** | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| **د زده كړې او تدريس فعاليتونه** | سلام اوسترې مه شي، د حا ل او احوا ل پوښتنه، له تېر لوست څخه څو پوښتنې او بيا په نوي لوست پيل كول. | ۴ دقيقې |
| **د انگېزې رامنځته كول** | ښاغلی ښوونكيه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل كړئ او كولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې و كړئ.<br>–كومې نوميالۍ ښځې چې زموږ په سياسي او ادبي تاريخونو كې ثبت دي پېژنئ؟<br>– د سپينې ادې په اړه مو څه اورېدلي يا لوستلي دي؟<br>كه مو اورېدلي يا لوستلي دي يو تن دې خبرې پرې وكړي.<br>– كومې ښځينه شاعرانې پېژنئ چې هېوادني شعرونه يې ويلي دي؟ | |
| **د ښوونكي فعاليتونه** | **د زده كوونكو فعاليتونه** | **۳۵ دقيقې** |
| – ښوونكی دې په څو زده كوونكو نوی لوست په لوړ غږ ولولي او په سمو لوستلو كې دې له زده كوونكو سره مرسته وكړي. | – څو زده كوونكي په وار سره نوی لوست په لوړ غږ لولي اودښوونكي لارښوونې ته پاملرنه كوي . | |
| – ښوونكی دې لوست په خپله په مناسب غږ ولولي او ستونزمنې كلمې دې پر تخته وليكي. لومړی دې معنا له | – زده كوونكي متن په ځير سره گوري او غوږ ورته نيسي او د نوو كلمو په معنا كولو كې برخه اخلي. | |

| | |
|---|---|
| زده کوونکو ځخه وپوښتي.<br>دنه پوهیدوپه صورت کې دې په خپله ښوونکی د کلمو معنا د تختې پرمخ ولیکي. | |
| – ښوونکی دې له څو زده کوونکو ځخه وغواړي چې د سپینې ادې په اړه خبرې وکړي. ښوونکی د زده کوونکو معلوماتو ته تر پایه پورې غوږ نیسي او نیمگړتیاوې یې بشپړوي. | – څو زده کوونکي په وار سره د سپینې ادې په اړه خپل معلومات نوروته وړاندې کوي. |
| – ښوونکی دې د سپینې ادې شعر په څو زده کوونکو باندې ولولي او بیا دې زده کوونکي د شعر په مفهوم رڼا واچوي اوزده کوونکي دې د شعر ښه ویلوته وهڅوي . | – څو زده کوونکي شعر په سم تلفظ لولي او بیا یې په مفهوم رڼا اچوي. زده کوونکي دښوونکي له هڅولو ځخه وروسته د شعر ښه او سم لوستلو ته ځانونه چمتو کوي |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو ځخه دا لاندې پوښتنې وکړي او د دوی ځوابونه دې واوري. دنه پوهېدو په صورت کې دې ځوابونه په خپله ووایي.<br>• سپینې ادې څه وخت او چېرته ژوند کاوه؟<br>• د سپینې ادې شعر په کوم شعري چوکاټ کې ویل شوی او موضوع یې څه ده؟<br>• تاسې د سپینې ادې د شعر په څېر له کوم بل شعر سره آشنا یاست؟ د شاعر نوم او موضوع یې روښانه کړئ؟ | – زده کوونکي په خپله خوښه د ښوونکي پوښتنو ته اړوندځوابونه ورکوي. |
| – ښوونکي دې له زده کوونکو ځخه وغواړي چې د شعر مهم ټکي په څو کرښو کې ولیکي او بیا دې په ټولگي کې واوروي. | – زده کوونکي په یوازې توگه د شعر مهم ټکي په څو کرښو کې لیکي او بیا یې لولي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.<br>غلیم، هجوم، پیاوړی، حصار، ټاټوبی، مامن، مدفن، ایثار، لتېر، بوره. | – زده کوونکي په یوازې توگه د لوست څلورم فعالیت چې لغتونه دي معنا کوي او جملې ورته جوړوې. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په شعر کې ځانگړي نومونه او صفتونه په نښه کړي. | – زده کوونکي شعر په ځیر له ځان سره لولي او بیا په کې ځانگړي نومونه او ستاینومونه په نښه او په کتابچو کې یې لیکي . |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د سپینې ادې له حماسي شعر پرته په پښتو ژبه کې نور کوم حماسي شعرونه پیژني، نومونه دې یې له ویونکو سره په کتابچو کې ولیکي او په وار سره دې واوروي. | – زده کوونکي نور حماسي شعرونه چې پېژني نومونه یې له ویونکو سره په کتابچو کې لیکي او په ټولگي کې یې اوروي. |
| – ښوونکې دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې له سپینې ادې پرته نورې کومې اتلانې شاعرانې مېرمنې پیژني، | – زده کوونکي د نورو پښتنو اتلو مېرمنو نومونه اخلي او د هغوی اتلولي بیانوي. |

| | |
|---|---|
| نومونه دې یې له کارنامو سره بیان کړي. <br>– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه د لوست لنډیز بیان کړي. <br>– کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په وروستۍ ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده ورسپاري. | – څو زده کوونکي په خپله خوښه د لوست لنډیز بیانوي. <br>– زده کوونکي د سپارل شوې کورنۍ دندې موضوع په خپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې یې لیکي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**شاه کامران سدوزی:** کامران د شاه محمود زوی او د تیمورشاه لمسی و، چې په هرات باندی یې تر ډیره حکمراني وکړه.

**عبدالروف بېنوا:** زموږ د ګران هېواد نامتو لیکوال او شاعر دی. په ۱۲۹۲هـ ل کال په کندهار کې زېږېدلی دی او په ۱۳۶۳هـ ل کال کې یې له نړۍ څخه سترګې پټې کړي دي.

۱ـ تاریخ: د بشري پېښو ټولګې ته وایي چې ټولنیز، سیاسي، اقتصادي، علمي، ادبي او کلتوري اوضاع او د پېښو د اړیکو څرنګوالی د علت او معلول د اړیکو پر بنسټ په کې څېړل شوي وي.

۲– یا دا چې تاریخ په ټولییزه توګه د هر شي د تېر وخت مطالعې ته وایي.

پښتو تشریحي قاموس (دویم ټوک)

**مثنوي:**

په پښتو ژبه کې د دوه ییزبیتونو مفهوم افاده کوي. په عربي ژبه کې ورته (مثنوي) وایي. یو ځانګړی شعري ډول دی، چې د هر بیت دواړه نیم بیتی یې سره هم قافیه او هم آهنګه وي. کیسې او دیني موضوعات پکې راځي .

**سدوزیان:**

سدوزیان د پښتنو د یوه ټبر نوم دی. په ابدالیانو پښتنو کې یو نامتو سړی د اسدالله خان په نامه تېر شوی دی، چې په خپل قوم کې د سدوخان په نوم مشهور و. د عقل او هوښیارۍ له کبله ډېر اوچت و. تر ده وروسته د ده کورنۍ د سدوزو په نامه مشهوره شوه. د هرات سدوزي حکمرانان چې تر لوی احمد شاه بابا د مخه تېر شوي دي. د افغانستان په تاریخ کې د هرات د ابدالیانو په نوم یادیږي.

**اصحاب:**

د صاحب جمع یعنې یاران او ملګري.

**شاهزاده:**

جمع یې شاهزادګان: (دپاچازوی).

**الکوزی:** د پښتنو یوه مشهوره قبیله ده.

**شعر:**

هغه کلام دی چې په موزونو کلماتو یومفهوم افاده کړي او هنري ارزښت ولري. شعر د ټولنیزو ځانګړنو او موضوع له نظره ډېر ډولونه لري چې په لاندې ډول دي: رزمي شعر، غنایي شعراوداسې نور .

**کارنامې:**

دانسانانو لوړې او فوق العاده مادي اومعنوي لاسته راوړنو او کارونو ته وایي چې د ژوند په بېلابېلو اړخونو، لکه: ادب،

هنر، علم او نورو برخو کې د ډېرو عالي فکرونو زېږنده اومحصول وي. ملي او یا نړیوال شهرت ولري.

**توره:**

د یو چا مېړانه، شهامت، سترکارونه، تاریخی چارې او لاسته راوړنې دي.

**ټولنه:**

ټولنه د انسانانو ګڼې ډلې ته وایي چې یو له بل سره راز راز اړیکې لري. بنسټیزې اړیکې یې د مادي نعمتونو د تولید او د تولید د وسایلو په برخه کې وي چې په هغوی سره دغه نعمتونه تولیدیږي.

**اضافي معلومات:**

ښاغلی ښوونکیه! د سپینې ادې په هکله په درسي کتاب کې څه ناڅه معلومات موجود دي .ددې پښتنې شاعرې د ژوند، حالاتواو اشعارو په هکله کولای شئ د درسي کتاب له لوست څخه ګټه واخلئ. داخوڅرګنده ده چې په هره تاریخي ادبي دوره کې زموږ پښتنو میرمنو د پښتو ژبې لپاره معتبر خدمتونه کړي او له هغوي څخه ډېر منظم او مشهور آثار راپاتې دي. دلته غواړوچې ددغونومیالیو ښځینه شاعرانو تر څنګه حلیمه خټکه تاسوته دروپیژنو ترڅوپه تدریس کې له د غو معلوماتو څخه ګټه واخلئ.

**حلیمه خټکه:**

بي بي حلیمه خټکه د سترادیب او لوی قهرمان خوشحال خټک لور او د عبدالقادرخټک سکه خوروه. دغه نومیالۍ شاعره یوه عارفه او عالمه ښځه وه، د خپل وخت له ډیرو مروجو علومو سره یې بلدتیا درلوده. حلیمه خټکه یوه ادیبه او پرهیزګاره پښتنه وه. پښتو ښه او خواږه اشعار به یې ویل. او قران عیظم الشان یې هم په یاد زده و.

بي بي حلیمې د خوشحال خټک دکورنۍ دنورو ښځواو نجونو د تدریس دنده هم په غاړه درلوده او د هغوی په ښوونه او روزنه کې یې زیار ګاللی دی .

دپټې خزانې په کتاب کې د حلیمه خټکې په هکله داسې راغلي دي:

حلیمه د خوشحال خټک لور او د عبدالقاد رسکه خور وه د خپل پلار په ژوندیې مروج علوم ولوستل او بیا د شیخ سعید لاهوري مریده شوه.تراوسه پورې د دغې نومیالۍ ادیبې او شاعرې یوازې یوغزل دادب پوهانو ته په ګوتو ورغلی دی.

پوهاند رښتین نوموړی غزل د (دپښتو ادب تاریخ) کې خوندي کړی هغه غزل دادی.

| | |
|---|---|
| دآشنا په فکر خوښه هسې شان شوم | نه پوهیږم چې ممتازکه نورجهان شوم |
| چې یې کړمه ستا په مینه سرفرازه | ثنا خوانه په څورنګه درحمان شوم |
| چې مجازمې د ایاز ولاړئ له زړه نه | سربلنده تر محمود غوندې سلطان شوم |
| و هر چاوته چې ګورم واړه دی دی | دجمال په ننداړو یې شادمان شوم |
| غیرفکر مې له زړه نه را بهر شو | پر خلیل و پر عدو باندې یکسان شوم |
| حلیمی دغماز مکرزیات له حد شو | چې دې بیل له یاره نه کاپه ګمان شوم |

**اخځلیکونه:**


۱ــ پټه خزانه، محمد هوتک، د پوهنې وزارت خپرونه

۲ــ پښتنې میرمنې، عبدالرووف بینوا، کابل دولتي مطبعه ۱۳۲۳هــ ش کال

۳ــ اوسنی لیکوال، عبدالرووف بینوا،

# اتلسم لوست

## تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | کاڼه (کیسه) | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د متن په لوستلو سره به د متن اصلي مفهوم درک کړي.<br>– د لنډې کیسې په اړه به معلومات تر لاسه کړای شي.<br>– د کاڼه (لنډې کیسې) اصلي مفهوم به په خپله ژبه وویلای شي. اوهم به د کیسې د ارزښت په اړه خپل نظر څرګند کړي.<br>– د نوو لغتونو په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>– د کیسې مفهوم به په څو کرښو کې ولیکلای شي.<br>– په متن کې به نومځري په نښه کړي.<br>– د متن د فعالیتونو پوښتنو ته به سم ځوابونه ورکړای شي.<br>– د متن لنډیز به بیان کړای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، په یوازې توګه کار ،ډله ییز کار،لوستل اولیکل. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک، مارکر او قلم. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، ستړي مه شي، د کورنۍ دندې کتنه او بیا د نوي لوست د ښه پیل لپاره د یوې انګېزې رامنځ ته کول. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکیه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړئ. او کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو سره شریکې کړئ!<br>– د کیسو لوستل مو ړ ته کومه ګټه لري؟<br>– د کوم لیکوال کیسه مو لوستې ده؟<br>– څوک کولای شي د خپل ژوند یوه کېسه ټولګیوالو ته په شفاهي توګه ووایي؟ | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې نوی لوست په چوپتیا له ځان سره ولولي.<br>ــ ښوونکی دې په څو زده کوونکو نوی لوست په لوړ غږ ولولي.<br>ــ بیا دې لوست په خپله ولولي. | ــ زده کوونکي دې نوی لوست په پټه خوله له ځان سره ولولي.<br>ــ څو زده کوونکي دې په وار سره نوی لوست په مناسب غږ ولولي.<br>– زده کوونکي دې متن په ځیر سره وګوري او غوږ دې | |

| | |
|---|---|
| | ورته ونیسي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه د کاپه (لنډې کیسې) مفهوم په خپله ژبه نورو ته ووایي. | – څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د کیسې مفهوم پخپله ژبه وایي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د کیسې ستونزمنې کلمې د تختې پرمخ ولیکي او څو تنه نور دې معنا ولیکي. تاسو د دوی تېروتنې ور اصلاح کړئ. | – څو زده کوونکي دې په وارسره د متن ستونزمنې کلمې د تختې پرمخ لیکي او څو تنه نوردې یې معنا پر تخته و لیکي او خپلو تېروتنو ته دې پاملرنه وکړي. |
| ــ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې متن ولولي او ضمیرونه پکې په نښه او پرتخته دې ولیکي. | – څو زده کوونکي متن لولي او نومځري په نښه او پرتخته یې لیکي. |
| ــ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه پوښتنه وکړي چې ضمیر (نومځری) څه ډول کلمه ده؟ د هغوی ځوابونه دې واوري او بېلګې دې پرتختې ولیکي. | – زده کوونکي ضمیرونه (نومځري) تعریف او بېلګې یې پر تختې لیکي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړي او ځوابونه دې واوري. ښوونکی دې کوښښ وکړي چې ټول زده کوونکي په ځواب ویلو کې برخه واخلي.<br>• په پښتو ژبه کې کوم کیسه لیکونکي پېژنئ نومونه یې واخلئ؟<br>• د کیسو لوستل څه ګټه لري؟<br>• د مهدي شاه د لنډو کیسو د ټولګو نومونه کوم دي؟ د نه پوهېدو په صورت کې تاسې ښاغلی ځواب ووایاست. | – زده کوونکي په خورا مینې سره د پوښتنو په ځواب ویلو کې برخه اخلي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې یوه ډله د مهدي شاه د دغې کیسې په اړه خپل نظر په څو کرښو کې څرګند کړي. بله ډله دې په کیسه کې د ژبې محاورې او اصطلاحات په نښه کړي. درېمه ډله دې د کیسو د ارزښت په اړه څو کرښې ولیکي. | – یوه ډله زده کوونکي د مهدي شاه د لوستل شوې کیسې په اړه خپل نظر په څو کرښو کې لیکي، بله ډله په کېسه کې اصطلاحات په نښه کوي او درېمه ډله د کېسو د ارزښت په اړه څو کرښې معلومات لیکي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه د کیسې لنډیز په خپله ژبه بیان کړي. | – څو زده کوونکي په وار سره د کېسې لنډیز بیانوي. |
| ــ کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو په لومړي او دویم ساعت کې په خپله خوښه او په درېمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري. | – زده کوونکي دې کورنۍ دنده په کورونو کې بشپړه کړي او بله ورځ دې په پښتو درسي ساعت کې واوروي. |

**د متن دستونزمنو برخو روښانول:**

**ساندې ویرنې:** ساندې هغه ویر، ژړا او ماتم دی چې څوک د چا په مړینې کوي.

سخات:سکات، اسقاط، د مړي د جنازې د لمانځه څخه وروسته د مړي د روژې یا لمانځه کفاره ادا کول.
وارثان: د مړي نژدې کسان یعنې د کورنۍ غړي چې دوی ته د مړي څخه مال او شتمني پاتې شي.
په افغانستان کې د لومړي ځل لپاره لنډه کیسه پوهاند عبدالحی حبیبي ولیکله او په (۱۳۱۵هــ ل ) کال یې د (طلوع افغان) په ورځپاڼه کې خپره کړه. دا کیسه (توریالی پښتنه) نومېده. د پوهاند عبدالحی حبیبي نه وروسته یو شمېر نورو لیکوالو لنډې کیسې ولیکلې او دغه نوي ادبي ډول ته یې پرمختګ ورکړ. هغو لیکوالو چې په دې برخه کې کار کړی نومونه یې په دې ډول دي. استاد ګل پاچا الفت، قیام الدین خادم، صدیق پسرلی ،موسی شفیق، میرا جان سیال، ګلاب ننګرهاری، حبیب الله تږی، ابراهیم عطایي، محمد دین ژواک، عبدالمنان ملګری، مصطفی جهاد او نور...

**اضافي معلومات:**

**د لنډې کیسې پېژندنه:**

لنډه کیسه چې په انګلیسي کې یې شارټ ستوري بولي د نړۍ په کچه پېژندل شوي لیکوال (اډګرالن پو) د لومړي ځل لپاره داسې تعریف کړه:

(لنډه کیسه، هغه نثري داستان وي چې په لوستلو یې له نیم ساعت څخه لږ وخت لګیږي او کله دا وخت دوو ساعتونو ته هم رسیدلی شي)

خو یو شمېر لیکوال بیا داسې وایي چې لنډه کیسه هغه ده چې په هغه کې مرکزي پېښه د لمر په شان حیثیت لري او نورې پېښې د ستورو په شان د هغه په شاوخوا ګرځي او په هغې پورې تړلې وي، چې په اصل کې ټول یوه منظومه جوړوي).

هیډیسن وایي: د لنډې کیسې لپاره لنډوالی یوازینی شرط نه دی، بلکې د دې تر څنګ ځینې نورې ځانګړتیاوې هم لري. هغه دا چې د کیسې موضوع د خپلو حدودو په چوکاټ کې رانغاړي. بې ځایه او بې اړتیا خبرې پکې نه ځایېږي، تاثر او اغیزوالی پکې یوازینی شرط دی.

خو یو تعریف چې ډېرو لیکوالو منلی هغه دا دی چې: (لنډه کیسه یو لنډ نثري اثر دی، چې په هغه کې لیکوال د یوې منظمې طرحې په مرسته یو اصلي شخصیت په یوې اصلي پېښه کې په ګوته کوي او اثر په ټولیز ډول یو ځانګړی تاثیر ښندي.

د لنډې کیسې اصطلاح د لویدیځ ادب د (شارټ ستوري) سره هم معنا ده او معمولاً د هغه نثري داستان لپاره استعمالیږي، چې له ناول څخه لنډ وي.

لنډې کیسې په اوسني مفهوم او فني بڼه په نولسمه پیړۍ کې په اروپا کې منځ ته راغلې او له هغه ځایه یې د نورې نړۍ ادبیاتو ته لاره موندلې ده. دغه نثري ادبي ډول له انګرېزي ژبې څخه اردو او بیا له هغې څخه د شلمې پېړۍ په لومړیو کې پښتو ادب ته راغلی دی. لومړنی پښتون لیکوال چې په دغه ډګر کې یې خپل قلمي ځواک ازمویلی مرحوم سید راحت زاخیلی دی، چې د (کونډې نجلۍ) په نوم یې یوه لنډه کیسه لیکلې ده.

لنډه کیسه د اوسني پر مختللي عصر زېږنده ده. څومره چې بشري ټولنې له یوې ورځې څخه بلې ته په ذهني او مادي لحاظ د پرمختګ پړاوونه وهلي په هماغه اندازه د انسانانو ضرورتونه او مصروفیتونه هم زیات شوي دي. پروني انسان چې ډېر وزګار وختونه لرل او حتی شپې شپې یې د مینې او محبت په روماني او د جنګونو او ننګونو په حماسي او د ښاپیریانو او دېوانو په خیالي او موهومي اوږدو اوږدو کیسو په لوستلو او اورېدلو سبا کولې او له هغو څخه یې خوندونه او پندونه اخیستل، خو د اوسني عصر انسان د ډېرو مصروفیتونو له امله دا کار نشو کولی، مګر دا چې د کیسو او پېښو اورېدنه، لوستنه او پرې ځان پوهونه د انساني ذهن فطري غوښتنه ده او د روحي تسکین لپاره همېشه د یوې مهمې اړتیا له

مخې د وخت په تېرېدو او د حالاتو په بدلېدو اوږدو اوږدو کیسو او داستانونو د اوسنۍ لنډې کیسې بنه خپله کړه. اوس د اوږدو کیسو پر ځای لنډه کیسه خلکو ته ډېره منلې ده.  ستر علت یې لنډون او د وخت د ضیاع مخنیوی دی، ځکه چې لوستونکی یې په لږ وخت کې هم لوستلی یا اورېدلی شي او د پند او انتباه دنده په ډېره اسانه توګه سرته رسولی شي.

**د لنډې کیسې موضوعات:**

په اوسني مفهوم او بڼه د لنډې کیسې د رامنځ ته کېدو په لومړیو وختونو کې به لنډه کیسه معمولاً یوه کرداري کیسه وه چې د یوه ځانګړي کردار یا کرکـــټر په شاوخوا به  چورلېده. په دې ډول کیسو کې به د چاپېریال عکاسي او منظر کشي هم وه، خو هغه به ډېره تته او په نشت شمېر وه. یا به د واقعي او د څه پېښې کیسه وه. په دې ډول کیسو کې به په ضمني توګه کردار او چاپېریال هم و، خو لیکوال به ډېر زور د پېښې او واقعې په روښانولو اچولو  او هغه به یې دکیسې اصلي موضوع ګرځولې وه. یا به چاپېریالي کیسه وه. د چاپېریال ژوره عکاسي به په کې کېدله. پېښه او کرکټر به په کې ضمني و.

اوس د لنډې کیسې د موضوعاتو لمن ډېره پراخه شوې ده ټول هغه څه چې انسان ورسره په بشري ټولنه کې په یوه او بله بڼه مخامخ او په انساني ژوند پورې اړه لري. انسان یې د خپلې پوهې او عقل په مرسته د لنډې کیسې موضوع کولای شي او لنډه کیسه پرې لیکل کېدای شي.

د لنډې کیسې د جوړښت بنسټیز توکي:

ــ د لنډې کیسې په چوکاټ یا بنسټیز جوړښت کې دا لاندې برخې شاملې دي:

۱– اډانه – پلاټ (طرحه): اډانه په کیسه کې هغې برخې ته وايي، چې کیسه پرې راڅرخي. یو بهرنی لـــیکــــــوال چې ایم فوستر نومیږي وايي: (اډانه د کیسې د ملا د تیر (شمزۍ) حیثیت لري. د پلاټ ګټه دا ده چې کیسه بې نظمۍ ته نه پرېږدي. د همدغې اډانې په وسیله کیسه لیکوال کولي شي خپله موخه په کیسه کې په داسې مهارت واوري چې د لوستونکي پاملرنه ځانته جلب کړي. د اډانې په وسیله کیسه لیکوال ټول هغه داخلي احساسات، عواطف، رواني، فلسفي او منطقي لیدلوری چې له مودو راهیسې یې په ذهن کې ګرځي راګرځي کولای شي څرګند کړي.

اډانه باید ډېره واقعیت ته نژدې وي، ځکه پورته موږ وویل چې د شمزۍ حیثیت لري او کله چې شمزۍ غلطه وي نو تر پایه همداسې غلطي پېښیږي.

د پښتو ژبې معاصر لیکوال سید محی الدین هاشمي په دې عقیده دی چې: (دا خبره ضروري نه ده چې کومه پېښه چې په لنډه کیسه کې بیان شوې وي خامخا به پېښه شوې وي) خو وروسته بیرته ټینګار کوي چې (باید داسې هم نه وي  چې په کیسه کې راغلې پېښې له شونتیا څخه لرې وي.)

د لنډې کیسې اډانه ډېر ډولونه لري چې د ساده او پیچلې نه نیولې بیا تر ترکیبي پورې رسېږي. څومره چې اډانه یا پلاټ ساده او هنري وي هماغومره کیسه په زړه پورې او خوندوره وي.

په اډانه کې وحدت او تسلسل حتمي او ضروري خبره ده، ځکه په اډانه کې هره یوه برخه لکه کړنه، پېښه او ان طنز له خپلې زاویې څخه لیدل کېږي. همدا زاویې لامل کېږي چې کیسه یو ډول زړه راښکون پیدا کړي او بې له دې کـــېدون نه لري.

**۲– کرکټر یا د کیسې کردار(اتل):**

هغه څوک دی چې په خپلو کړنو او ویناوو کې پېښه او کیسه رامنځته کوي. دا کرکټر له ستونزو او خنډونو سره د مقابلې او مجادلې په ډګر کې له بېلابېلو حالتونو او پړاوونو سره مخامخ کېږي. غورځي، پرځي ،خو په خپل ټول وس او ځواک د هدف په لور له وړاندې تګ څخه لاس نه اخلي.

د یوې لنډې کیسې په پېښه کې کیدای شي له یوه څخه زیات کرکټرونه راڅرګند شي. خو مرکزي کرکټر یکې هغه وي چې د پېښې جزئیات په مجموع کې د هغه په شاوخوا څرخي. دا مرکزي کرکټر د پیښې جزئیات ورو، ورو را برسیره کوي او بیا یوې پایلې ته رسیږي.

**۳– تلوسه یا غوټه (سسپنس):** تلوسه یا غوټه په کیسه کې هغه اساسي توکی دی چې بې له دې مور نشو کولی یوې لنډې کیسې ته کیسه وواېو، ځکه د نورو ادبي او څېړنیزو لیکنو توپیر هم د لنډې کیسې سره په همدې کې دی. تلوسه د کیسې هغه مهارت دی چې لوستونکی په لوستلو کې له یو ډول ویرې، شک او وسواس سره مخامخ کوي او په داسې ذهني ناارامتیا کې راګیرېږي چې د یو ډول ناکرارۍ احساس کوي او اړ کېږي چې د خپل ذهني تسکین په موخه کیسه تر پایه ولولي. که چیرې نوموړی بریالی نشي چې کیسه تر پایه ولولي، نو تل به ورته یو شمېر پوښتنې بې ځوابه پاتې وي. لکه ولې؟ څنګه؟ څه وشول؟ چا وکړل؟ څنګه به کېږي؟ او داسې نور...

د لنډې کیسې تکړه او غښتلی لیکوال هغه څوک دی چې دغه تلوسه تر پایه همداسې وساتي او لوستونکي ته په سلګونو پوښتنې پیدا کړي چې د اوریدو په موخه یې اړ شي او ویې لولي.

**۴– صحنه:** صحنه له ځای، مهال، پیښې، تصادف، څېرې او نورو ځانګړنو څخه عبارت ده چې کیسه په کې پېښېږي. صحنه په کیسه کې ډېر مهم او ارزښتناک رول لري. ځکه صحنه ده چې د اتل په ژوند کې یو ژور بدلون راولي.

**۵– خبرې اترې،** مکالمې (ډیالوګ) خبرې اترې یا مکالمې د کیسې هغه په زړه پورې برخه ده چې کیسې ته یو ځانګړی خوند وربښي او کیسه د اوج ټکي ته رسوي.

دغه خبرې اترې ډېر ځله د کیسې د اتل او اتلې له خوا ترسره کېږي، چې د ډول، ډول موضوعاتو په هکله وي. په خبرو اترو کې د لنډې کیسې لیکوال اړ دی چې د هرې سیمې لهجې په پام کې ونیسي او خبرو ته هماغه لهجه ورکړي او د خبرو اترو په وخت کې یې په پام کې ونیسي.

څومره چې ډیالوګ ساده وي هماغومره قوي او په زړه پورې وي. یوه خبره باید په یاد ولرو چې د لنډې کیسې او ناول خبرې اترې خورا ډېر توپیر سره لري. د ناول ډیالوګ ډېر اوږد او ډېرې پیښې په کې څرګندیږي. خو د لنډې کیسې خبرې اترې شمارلې او پوره معنا لرونکې وي، ځکه که چېرې لیکوال په لنډه کیسه کې د ډیالوګ لړۍ وغځوي او ډېر اوږده اوږده پراګرافونه په کې ځای کړي، نو نه یوازې دا چې کیسه له زړه راښکون څخه وباسي بلکې د لنډې کیسې له فورم څخه هم وزي او یو نوی شکل ځانته غوره کوي. نو په دې توګه په خبرو اترو کې باید لیکوال ډېر حساس وي. ځکه ډیالوګ د یوې کیسې هنري او ذوقي خواته نغوته کوي.

**٦– تخیل(خیال پردازي):** دنورو هنري او ادبي لیکنو په څېر په لنډه کیسه کې هم له تخیل څخه کار اخیستل کېږي. لیکوال د خپل تخیلي ځواک په وسیله د خپل ذهني تخلیق پېښې او کردارونه موږ ته په داسې بڼه وړاندې کوي چې بالکل واقعیت ته نژدې او په ټولنیز ژوند کې د هغسې کېدو امکان موجود وي. په دغه برخه کې د کیسې لیکوال معمولاً د یو اروا پوه په څېر خپل خیالي شخصیتونه په خیالي فضا کې مخې ته دروي او د خپلو خیالونو او تصوراتو په ملتیا د هغو په اړه څېړنه او مطالعه کوي او له انساني ټولنیز ژوند څخه د هغو د کړو وړو، اعمالو، خویونو، احساساتو او جذباتو طبیعي انځور اخلي. خو که په هغه کې ډېر لږ داسې غیر طبیعي والی هم څرګند شي چې انساني ذهن په هغسې شان شکمن کړي. کیسه بې اغیزې کوي او د لیکوال په فني خامۍ او ناکامۍ دلالت کوي.

**۷– د کیسې پایله:** هره پېښه چې په کیسه کې وړاندې کېږي خامخا به پیل، اوج او پای لري. د کیسې پېښه د کرکټرونو (کردارونو) د مکالمو، کړو وړو، افعالو او منظر کشۍ په وسیله ورو، ورو پرمخ ځي. ناڅرګند اړخونه یې څرګند او اچول شوې غوټې خلاصیږي. تر څو د روان کشمکش وروستي پړاو چې لیکونکی یې نوروته رسول غواړي

بشپړ شي.

په دې برخه کې زيات غور په کار دی او د کيسې پايله بايد په داسې ډول جوړه شي چې لوستونکي يا اوريدونکي ته کټ مټ د حقيقت په څېر وبريښي او که لږ مصنوعيت او غير طبيعي والی هم په کې څرگند شي د ټولې کيسې خوند به ورک او خراب کړي.

دلنډې کيسې پايله ليکوالان په عام ډول په دوه ډوله وېشي:

۱– هغه پايله ده چې ليکوال لوستونکي يا اوريدونکي له ځان سره د خيال په وزرو د آسمان تر شنو رسوي او هم هلته يې پريږدي، چې په خپله لوستونکي يا اوريدونکي پرې قضاوت وکړي او يوه د حل لاره ورته پيدا کړي او وروسته پرې خبرې وکړي او بيا پرې قضاوت وکړي.

۲– په دويم ډول پايلې کې ليکوال هرڅه تر ډېره حده په روښانتيا سره وايي او د لوستونکي او اوريدونکي د ذهني ذکاوت ازموينې ته څه نه پريږدي. خو د ځينو ليکوالو په اند د يوې لنډې کيسې ډېره بده او ناوړه پايله وړاندې کول هغه ده چې کيسه ليکونکی هرڅه په خپله ووايي او لوستونکی سوچ او تفکر ته پرې نږدي.

**اخځليکونه:**


_ هاشمي، محقق سيد محی الدين، د ليکوالۍ فن،

_ سيدي، سيد نظيم پښتو، لنډه کيسه او ادبي ټوټه

_ د مهدي داستاني کليات. د ليکوالو د انجمن خپرونه ۱۳۶۷هـ کال دولتي مطبعه

# نولسم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | لفظي ښايستونه (صنعتونه) | |
| د زده کړې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د بديع علم په تعريف به وپوهيږي.<br>– د بديع علم د لفظي ښايستونو په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– د لفظي ښايستونو (صنعتونو) په اړه به معلومات ترلاسه او بېلگې به يې وويلای شي.<br>– په شعرونو کې به د بديع لفظي ښايستونه (صنعتونه) وپېژني.<br>– پوښتنو ته به مناسب او سم ځوابونه ورکړای شي.<br>– په متن کې به ځانگړي نومونه، صنعتونه او ضميرونه( نومځري) په نښه کړي او هم به دتجنيس تعريف او ډولونه وپيژني.<br>– د متن د پای فعاليتونه به سم ترسره کړای شي.<br>– د بديع علم لفظي ادبي ښايستونه (صنعتونه) به په ښو کرښو کې وليکلای شي. | |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنه او ځواب،يوکسيز کار او ډله ييز کار. | |
| دتدريس وسيلې او مرستندوی توکي | کتاب، تخته، تخته پاک، تباشير او د امکان په صورت کې د بديع او بيان بېلا بېل اخځليکونه. | |
| د ارزولو لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام اچول، د کورنۍ دندې کتل او بيا په نوي لوست پيل کول. | ۴ دقيقې |
| د انگيزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکيه! نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل کړئ. او هم کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړئ!<br>– د بديع علم څه ته وايي؟<br>د شعر لفظي ښکلاوې څه ډول وي؟ | ٦ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| _ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د ښو شببو لپاره نوی لوست (لفظي صنعتونه) په چوپتيا له ځان سره ولولي. | _ زده کوونکي دې نوی لوست په پټه خوله له ځان سره لولي او د لوست په مفهوم ځانونه پوهوي. | |
| _ ښوونکی دې په ښو زده کوونکو نوی لوست په لوړ غږ ولولي کوښښ دې وکړي چې کمزورو زده کوونکو ته په | _ زده کوونکي په وار سره د نوي لوست يوه يوه برخه په لوړ غږ لولي. | |

| | |
|---|---|
| لوستلو کې ډېره برخه ورکړل شي. | |
| ـ ښوونکی دې لوست په خپله ولولي او د ادبي صنعتونو په اړه دې رڼا واچوي او ستونزمن الفاظ دې پر تختې ولیکي او معنا دې کړي. | ـ زده کوونکي متن ته په ځیر گوري او غوږ نیسي. د ادبي ښایستونو په اړه معلومات بشپړوي او هم د ستونزمنو الفاظو په معنا او مفهوم ځانونه پوهوي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه د یوه ادبي صنعت تعریف له یاده ووایي. خپله ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي. | ـ زده کوونکي هر یو په خپله خوښه یو یو ادبي صنعت تعریف او له بېلگې سره یې وړاندې کوي او نور ورته غوږ نیسي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې دوه دوه تنه د تختې مخې ته راشي. یو تن زده کوونکی دې یو بیت پر تختې ولیکي او بل زده کوونکی دې په کې ادبي صنعت په نښه کړي او د تېروتنې په وخت کې دې نور زده کوونکي مرسته وکړي. | – دوه دوه تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راځي، یو زده کوونکی یو بیت پرتختې لیکي او بل په کې ادبي صنعت په نښه کوي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې مطرح کړي.<br>• د بدیع د علم ښستې ایښودونکی څوک و؟<br>• د بدیع علم څه ته وایي او له څه شي څخه بحث کوي؟<br>• لفظي صنایع څه ته وایي؟ | – زده کوونکي مناسب ځوابونه وایي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست دویم فعالیت یعنې شعر په غور ولولي او په هغه کې دې ادبي صنعت پیدا کړي او په کتابچو کې دې ولیکي. | – زده کوونکي دویم فعالیت یعنې شعر لولي او بیا په کې ادبي صنعت په نښه او په کتابچو کې یې لیکي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په یوازې توگه په پټه خوله متن له ځان سره ولولي او بیا دې ځانگړي نومونه، صنعتونه او ضمیرونه (نومځري) په کې په نښه او په کتابچو کې دې ولیکي او د تېروتنې په صورت کې دې ښوونکی ورسره مرسته وکړي. | – زده کوونکي په یوازې توگه متن لولي. ځانگړي نومونه، صنعتونه او ضمیرونه (نومځري) په کې په نښه کوي او په کتابچو کې یې لیکي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د لوستل شوي متن څخه چې څه یې زده کړي په خپله ژبه نورو ته بیان کړي. | – زده کوونکي په خپله خوښه د لوستل شوي متن مهم ټکي تشریح کوي. |
| – کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکو ته د پینځو په لومړي او دویم درسي ساعت کی په خپله خوښه او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وسپاري. | ـ زده کوونکي د سپارل شوې کورنۍ دندې عنوان په کتابچو کې لیکي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**قارون:** د موسیٰ علیه السلام د تره زوی و. په رنگ ښایسته او د تورات په یادولو کې تر زیاتو بني اسرائیلو د مخه و، خو په جاه

طلبی کې یې افراط کاوه او د بخل او رخې برخه یې هم زیاته وه. الله ﷻ ډېر مور پیدا کړی و، خو د شکر پر ځای به یې خپل مال او شتمني د بني اسرائیلو مخې ته را ایسته او په هغه به یې ویاړ کاوه. نه یې د چا نصیحت مانه او نه یې د زکات په ورکولو کې د موسی علیه السلام لارښوونه منله.

**عباس:** جمع یې عباسیان دي د محمد ﷺ د تره نوم او د عباسي خلیفه ګانو مشر نیکه دی. دوی تور بیرغ د خپل شعار په توګه ځان ته غوره کړی و او د بغداد ښار یې مرکز ټاکلی و. د عباسیانو دولت د (۱۳۲هــ) څخه تر (۲۰۵هــ) پورې دوام وکړ.

**بدیع:** د بیان د علم یو ډول دی چې د کلام لفظي او معنوي ښایست وربانديې معلومیږي او ډېر ډولونه لري.

**تألیف:** لیکنه لکه د کتاب یا کوم بل اثر په داسې ډول چې مطالب یې له نورو کتابونو څخه را اقتباس شوي وي. په تالیف کې کېدای شي یو کس وي یا له یوه کس څخه زیات وي.

**عبدالله:** د الله ﷻ بنده. په عربي ژبه کې (عبد) د بنده په معنا دی.

**کنعان:** په عراق کې د یوې تاریخي سیمې نوم دی.

**اضافي معلومات**

**لفظي صنعتونه (ښایستونه):**

هغو ښایستونو ته ویل کېږي چې د یوه کلام ظاهري اړخ او شکل سره اړیکې لري او د یوه کلام ظاهري اړخ څېړي او له معنا سره یې کومه اړیکه نه لري په لاندې ډول دي:

**تجنیس:** هغه ادبي ښایست ته ویل کېږي چې دوې یا زیاتې کلمې د شکل له مخې سره یو یا نژدې وي او د معنا له مخې سره بېلې وي لکه:

فراق په ما خوري د زړګيویني

آشنامې نشته الله مېویني

په پورته بیت کې (ویني، ویني) کلمې متجانسې دي. لومړۍ کلمه د وینو په معنا او دویمه کلمه د لیدلو په معنا ده، چې په لیکلو کې یو، مګر د معنا له مخې توپیر لري. تجنیس په اووه ډوله دی: .

**۱ــ تام تجنیس:** هغه تجنیس ته ویل کېږي چې په شعر کې داسې لفظونه راوړل شي، چې په لیک، لوست، شکل، وزن او حروفو کې سره یو شان وي خو معنا یې بدله وي، لکه:

خوارې کړې هغه مینځې چې د مینځې کالي منځي.

په پورته متل کې لومړۍ مینځه د نوکرې په معنا چې نوم دی. دویمه (مینځې) د پرېمینځلو په معنا ده چې د کړ (فعل) واقع شوی دی. (کړ (فعل) هغه کلمې ته ویل کېږي چې په یوه زمانه کې د کار په کولو دلالت کوي.)

**۲ــ مرکب تجنیس:** دا د تجنیس هغه ډول دی چې دوه لفظونه په یوه شکل کې راوړل شي، چې په حروفو او ترکیب کې سره برابر وي، مګر یو لفظ یې مفرد وي او بل مرکب.

تورې دې زلفې تور دې اوربل دی

مخ مې دې ولید لکه اوربل دی

په پورته بیت کې اوربل کلمې متجانسې دي، چې لومړۍ (اوربل) ساده او د پیکي معنا لري. دوهم اوربل مرکب راغلی دی، چې د اور په معنا او بل د لګېدو معنا لري نو ځکه مرکبې دي.

**۳ــ ناقص تجنیس:** که چېرې د متجانسو کلمو په حرکتونو کې توپیر راغلی وي یا واقع شوی وي ناقص تجنیس بلل کېږي.

تاچې وکړه بنه وینا راته پسته

زه دې ځارشم تردې خوله لکه پسته

په پورته بیت کې لومړۍ پسته د (پ) په زور د نرمې په معنا ده. دویمه پسته د (پ) په زېر یوه ګټوره او خوندوره وچه مېوه ده، نو ځکه د پسته حرکت زور دی او په پسته د (پ) حرکت زیر دی.

**۴-مطرف تجنیس:-** هغه تجنیس ته ویل کېږي چې دوه لفظونه سره هم شکله، هم وزنه او د تورو په شمېر کې سره برابر وي، مګر یو حرف په کې بدل وي.

بېلتانه دې ګوره هسې کړم بې واکه

چې وهي يې هر مېږی و مچ بې باکه

په پورته بیت کې واکه او باکه متجانسې کلمې دي، نو ځکه د (و) او (ب) غږونو مخرجونه سره نژدې دي.

**۵-مکرر تجنیس:** هغه تجنیس ته ویل کېږي چې یو شاعر یا یو ناظم د خپلو بیتونو په پای کې دوې داسې متجانسې کلمې راوړي چې د لومړۍ متجانسې کلمې په سر کې یو یا څو توري زیات وي. یا په بل عبارت متجانسې کلمې د بیت په پای کې پر له پسې راشي مکرر تجنیس ورته وایي.

هسې کړی یمه هغه دل ازار، زار

چې په بله خوا مې نه دی اختیار یار

د پورته بیتونو په آخر کې د آزار، زار او اختیار سره یار مکرر راغلي دي، نو ځکه يې مکرر تجنیس بولي.

**٦- زاید تجنیس:** که چېرې د متجانسو کلمو په سر، منځ او آخر کې یو توری زیات راشي. زاید تجنیس بلل کېږي، لکه:

په ساده حسن جمال سره رنګینې

د رنګین حسن په ګوتو کې نګینې

په پورته بیت کې (رنګینې) کلمو کې تجنیس شتون لري چې په رنګینې کلمه کې (ر) توری یا یو حرف زیات دی.

**۷-خطي تجنیس:** چې متجانسې کلمې د شمېر له مخې سره یو اوهم بې بڼه سره یوه وي، مګر په ټکو کې توپیر سره ولري لکه:

| | |
|---|---|
| په دې عصر کې پیدا شول کاتبان | چې فرق نه کا د بتان او د بیان |
| مرید وکاږي مرتد ترې خبر نه وي | نه صنم له خوبه ویښ کړای شي عیان |
| خاص محرم کاږي مجرم له خپله فکره | جم او خم کاږي قلم سره یک سان |
| صداقت چې صدافت نه کړې قادره | په نصیب زما حنان کړې ستا جانان |

په پورته بېلګو کې بتان، بیان، مرید، مرتد، محرم، مجرم ، صداقت او صدافت کلمې سره متجانسې دي او په ټکوکې يې توپیر دی نو ځکه يې خطي تجنیس بولي.

**سجع:** په لغت کې د قمرۍ موزون غږ ته ویل کېږي او په اصطلاح په نثر کې د جملو د فقرو هم آهنګۍ ته سجع وایي.

د بېلګې په توګه متل دی خپله خوله هم کلا ده هم بلا ده.

په لومړي متل کې کلا او بلا هم د تورو او هم د شمېر له مخې سره مساوي دي څرنګه چې (ل) په دواړو کلمو کې لومړی متحد توری دی نو (ل) روي دی. یا لکه د عیان او بیان کلمې.

ذوالقافیتین یا د غبرگو قافیو لرونکی: که چېرې یو شاعر په خپل شعر یا نظم کې دوې قافیې خوا په خوا راوړي ذوالقافیتین ورته ویل کېږي، لکه عبدالرحمٰن بابا وایي:

هسې زه یم یاره ستا په غم تازه
لکه وي هره گیا په نم تازه
زه به څه کړم د چا چارې بې له یاره
هر سړی دی په خپل سا په دم تازه

په پورتنیو بیتونو کې (ستا، گیا او سا) یوه قافیه او (غم، نم او دم) بله قافیه ده چې د دغو دواړو قافیو ترمنځ د (په) وییکي د (ردیف) په توگه راغلی دی، نو ځکه یې ذوالقافیتین بولي.

**ذوالسانین:** هغه صنعت ته ویل کېږي چې یو شاعر یا یو ناظم خپل شعر یا نظم په دوو یا ډېرو ژبو راوړي.

لکه خوشحال بابا چې وایي:

| | |
|---|---|
| افغان بچه شوخي | هرگز په عاشق باندې |
| لطفی نکنی رحمی | دا هم کله څوک کاندي |
| یک لحظه بیا بنشین | ماخوبش په ښه خندا کړه |
| قربان سرت گردم | چې نورو ته خاندې |

معما: یو نوم یا تاریخ یا مطلب د نثر یا نظم په یوه ټوټه کې په رمز او ابهام سره د قلب، تشبیه، تصحیف، تحلیل، جمل حساب، تبدیل، ترکیب، اسقاط او تألیف په صورت راوړلو ته معما وایي.

معما مې ده دا سم دوه سمک
حاد د دوو سمکو سروکو عالم

**د معما حل:** په عربي ژبه کې کب ته سمک وایي او (ن) ته هم سمک وایي په دې حساب حنان د نون دوې کلمې اخېستې او (حا) یې نیمایي کړې. نون او واو یې له منځه پرېکړی او (ح) یې د لومړي نون سره او الف یې د بل نون سره یو ځای کړی او د حنان نوم ورڅخه جوړشوی.

قلب: هغه صنعت ته ویل کېږي چې یو شاعر یا ویونکی په خپل شعر یا وینا کې د دوو یا زیاتو داسې کلمو ذکر وکړي چې توري یې په نوع یا عادت کې سره یو او په ترتیب کې سره اوښتي وي قلب بلل کېږي لکه:

د دوران د انقلابه لا بقا شي
اعتماد به دانا څه په دا اقبال کا

په پورته بیت کې که چېرې دلابقا کلمه سرچپه کړو له هغه څخه اقبال جوړیږي.

**اخځلیکونه:**


۱ــ پنهان، حاجي محمد فضل، ادبي ارمغان، ۱۳۸۳ ه ل کال.
۲ــ شېرزاد، محمد اقا، ادبي فنون (بدیع او بیان) ۱۳۸۴ ه ل کال.
۳ــ ارشاد، اورنگزېب، بدیع او د پښتو شعر، دانش کتابتون پېښور ۱۳٦۹ ل کال.
۴ــ همکار، محمد ابراهیم، پښتو شاعري او بدیع فن.
۵ــ ختک، فضل میر، فضلیات (پښتو ادبي اصطلاحات)، ۱۹۹۹ زیږدیز کال پېښور.

## شلم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | هجري او د هغه حبسیات | |
| **د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– اشرف خان هجري به وپېژني او د هغه د ژوند په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– د اشرف خان هجري د شعر په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– د هجري د حبسیاتو په اړه به نورو ته معلومات وړاندې کړي.<br>– په لوست کې به شعرونه روان ولوستلای شي او په مفهوم به یې خبرې وکړای شي.<br>– د متن لنډیز به په خپله ژبه وویلای شي.<br>– د متن د پای فعالیتونه به په سمه توګه تر سره کړای شي.<br>– پوښتنوته به سم ځوابونه وویلای شي.<br>– د هجري د زنداني کېدو عوامل به په څو کرښو کې ولیکلای شي او د ده د ژوند په ترخو خاطرو (ژوند پېښو) به پوه شي.<br>– په شعرونو کې به ادبي صنعتونه پیدا او وبه یې لیکلای شي. | |
| **د تدریس لارې** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه. | |
| **دتدریس وسیلې او مرستندوی توکي** | کتاب، تخته، تخته پاک، تباشیر، او د امکان په صورت کې ټولګي ته د اشرف خان هجري د شعرونو د دېوان راوړل. | |
| **د ارزولو لارې او وسیلې** | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه. او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| **د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | سلام اچول، د ټولګي تنظیمول، د کورنۍ دندې کتنه او بیا په نوي لوست پیل کول. | ۴ دقیقې |
| **د انګېزې رامنځته کول** | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي. او کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړي!<br>– د خوشحال خان په زامنو کې څوک د پښتو ژبې شاعران وو؟<br>– په پښتو شاعرانو کې کوم شاعران پېژنئ چې حبسیه شعرونه یې ویلی دي؟<br>– د اشرف خان هجري د حبسیه شعرونو په اړه څه ویلای شئ؟ | |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د څو شېبو لپاره نوی لوست (هجري او د هغه حبسیات) په پټه خوله له ځان سره ولولي. | – زده کوونکي نوی لوست په پټه خوله له ځان سره لولي او د لوست په مفهوم ځانونه پوهوي. | |

| | |
|---|---|
| - ښوونکی دې په څو زده کوونکو نوی لوست برخه، برخه په لوړ غږ ولولي، کمزورو زده کوونکو ته دې په لوستلو کې ډېره برخه ورکړل شي. | - زده کوونکي په وار سره نوی لوست په لوړ غږ لولي او مطلب یې درک کوي. |
| - ښوونکی دې متن په خپله ولولي او د هجري او د هغه حبسیاتو په اړه دې لنډه رڼا واچوي. | - زده کوونکي متن ته په ځیر ګوري او غوږ ورته نیسي. د هجري او د هغه د حبسیاتو په اړه معلومات ترلاسه کوي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د هجري شعر په وار سره ولولي او څو تنه نور دې په مطلب خبرې وکړي. | - زده کوونکي د هجري شعر په وار سره لولي او نور ورته غوږ نیسي. څو تنه زده کوونکي د شعر د مطلب په اړه خبرې کوي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړي او د هغوی ځوابونه دې واوري. د نه پوهېدو په صورت کې دې په خپله د پوښتنو ځوابونه ووايي؟<br>• هجري څه وخت او د کوم پاچا په وخت کې بندي شو؟<br>• هجري په کوم زندان کې بندي و؟<br>• هجري چېرته او په کوم حالت کې وفات شو؟<br>• په پښتو کې د حبسیه شعرونو ویونکي څوک دي؟ | - زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي او د نه پوهېدو په صورت کې د ښوونکي ځواب ته ځیر کېږي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د هجري د زنداني کېدو عوامل په څو پراګرافونو کې ولیکي او بیا یې په وار سره ولولي. ښوونکی دې د زده کوونکو د لیکنو تېروتنې ور اصلاح کړي. | - زده کوونکي په یوازې توګه د هجري د زنداني کېدود عواملو په اړه څو کرښې لیکي او په وار سره یې لولي. بیا خپلو تېروتنو ته ځیر کېږي او هغه اصلاح کوي. |
| - ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه د هجري د لوستل شوي متن لنډیز بیان کړي. زده کوونکي دې په ډېر ښه، افرین، شاباس او نورو ښو الفاظو سره وهڅوي. | - زده کوونکي په خپله خوښه د هجري د لوستل شوي متن لنډیز په خپله ژبه بیانوي. |
| - کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکو ته په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري. | - زده کوونکي سپارل شوې کورنۍ دنده په کتابچو کې لیکي او هغه په کور کې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**سوات:** په کوزه پښتونخوا کې د یوې پراخې او سمسورې سیمې نوم دی.

**اټک:** د اباسین پر غاړه د یوه کلي نوم دی او په خپله د اباسین ته هم اټک وایي.

بیلتانه یې پېښور راته تنور کړ

له خــــیبره تر اټکه الغیاث

**قصیده:** په پښتو ژبه کې ورته (بوللــه) وايي. یو ډول نظم دی، چې د غزل په څېر یوه مطلع لري او ورپسې نور بیتونه يې په وزن او قافیه کې سره یو شی وي. د بیتونو شمېر يې له (۱۵ — ۲۰۰) پورې رسیږي.

**ولایت:** یو لوی اداري او تشکیلاتي جوړښت دی، چې په هېواد کې ځانګړی ځای لري او یو شمېر ولسوالۍ د هغه په تشکیلاتو کې شتون لري او د درې ګونو واکمنو قواوو استازي يې د چارو مسؤول دي.

**روهي:** د (روه) او (روهه) ته منسوب پښتون.همدارنګه اشرف خان هجري کله کله د روهي تخلص هم په خپلوشعرونوکې راوړی دی .

**روه:** د پښتنو هېواد، هغه سیمه چې پښتانه په کې اوسیږي. د افغانستان د یوې غرنۍ برخې ډېر پخوانی نوم دی. روه کلمه کله کله زموږ د هېواد په ټولو سیمو باندې اطلاق شوې ده.

**استغفار:** ښښنه غوښتل، د توبې غوښتلو دعا.

**اضافي معلومات:**

اشرف خان هجري د پښتو ژبې تکړه او پیاوړی شاعر.

اشرف خان هجري کله کله ځان روهي هم بولي. د خټکو د کهول یو پوخ او پیاوړی قصیده ویونکی دی. د ده په قصیده کې د هېواد د بېلتانه سوی درد پټ پروت دی. بېلتون د ده کلام ته ځانګړی اثر او د سوځوونکو احساساتو تودوالی او د هېوادني اشعارو ځانګړی رنګ او اهنګ وربخښلی دی. دغه خوږ ژبی بلبل هسی درافشاني کا:

ما هجري ته يې هجران دکن لمبه کړ

ځکه تل دیار له غمه در افشان یم

هجري هنر دوست او د لوړ ذوق خښتن و. په یوې اوږدې قصیدې کې د هنر لوړ مقام او د پښتو شاعرانو هنري منزلت ټاکي او په انتقادي نظر يې ګوري. دا قصیده په ادبي اصطلاح یوه لنډه قصیده ګڼلی شوځکه چې کـــوم نسیب یا تشبیب نه لري:

د مردانو بډایي علم و هنر دی

ارایش د ګلرخانو په زېور دی

د هنر پیشه زېور د زیرکانو

هر چه فخر په دولت کاندي بقر دی

په اقبال د دهر ځای د غرور نشته

د بقا زوال يې ژر لکه دیګر دی

په هغه یار فرزانه کله نازیږي

چې يې نن په غېږ کې یو سبا دیګر دی

مهین یار تر علم نشته په دنیا کې

په دوه داره مدعا لره رهبر دی

که عالم په علم جوړ ملک يې بوله

بلکه لاتر پرښتو نه نکوتر دی

هجري د خپل پلار خوشحال خان خټک په استاذۍ او فني مهارت وياړي او ځان يې په مستقيم ډول خلف او شاګرد ګڼي او وايي:

| | |
|---|---|
| په پښتو ژبه چې شعر چا بيان کړ | د همه و نظم ستوری دی، دی نمر دی |
| څه خوبي د هغه نمر وايي مهجوره | چې يې نوم د هر نيولی سر په سر دی |
| ټول يې وسپاره په ما سرير د نظم | هغه نمر چې نن د خاورو په بستر دی |
| نن حريف د ځواب نه وينم په دور | نه مې يوله مړو په شعر برابر دی |
| زه محتاج د شاهد نه يم په دا قول | په راستۍ مې دا غرا شعر محضر دی |
| که څوک خيال د جدل کا زما له نظمه | دغه ګوی دغه ميدان دغه احقر دی |
| زيبا شعر هسې زړه د هجري يوور | لکه زړه د سفله وړی سيم وزر دی |

نکوتر: نکو د نيکو مخفف دی معنا يې ښه دی.

ښاغلی اروا ښاد سرڅېړونکی روهي د هجري د شعر او شاعرۍ په اړه چې د خپلې ليکنې ( د هجري نړۍ ليد) کې داسې ليکي:

اشرف خان هجري زياتره يو غزل ويونکی شاعر دی. مګر د ژوند ناخوالو او ټولنيزو بې عدالتيو د ده په حساسو مغزو کې ځينې پوښتنې راخوځولي دي او بيا يې د غو پوښتنو ته په ځواب ورکولو سره يو فلسفي تکيه ځای جوړ کړې دی، چې موږ کولی شو د دغو ځوابونو ټولګې ته د اشرف خان هجري د نړۍ ليد نوم ورکړو. هسې، خو په نړۍ کې هر څوک د ځان، نړۍ، مرګ، ژوند، تقدير، اول او اخر او داسې نورو فلسفي موضوعاتو په هکله له ځان سره يو څه تصور لري، خو د زياترو خلکو تصورونه کسبي او تلقيني دي او د سقراط فيلسوف په شان يې خپلې عقيدې، انګېرنې، ارزښتونه او موخې له سره په انتقادي ډول نه دي ارزيابي کړي او د تلقين او پټو سترګو تقليد له دايرې څخه د باندې نه دي وتلي.

اشرف خان هجري د بيچاپور له زندانه په دې ډول سرټکوي:

بېجاپور به هجري څه کاوه يارانو
د قضا علاج پرې نه کېږي ناچار دی

همدا رنګه د خپل ګران هېواد په ياد او په بېجاپور کې تنګېده په دې ډول څرګندوي:

زه هجري دايم هوس د خپل وطن کړم
بېجاپور که هر څو ښه د اورنګ شاه دی


**اخځليکونه:**

۱ــ د هجري ياد – د اشرف خان هجري د دري سوم تلين د علمي سيمنار د مقالو ټولګه، خپرونکی د افغانستان د علومو اکاډمۍ د ژبو او ادبياتو مرکز ۱۳۶۴ کال چاپ.

۲ــ د اشرف خان هجري ديوان، ترتيب او سمونه، هميش خليل، پښتو اکاډيمي، ۲۰۰۱م کال ۲

۳ــ ننګيالی پښتون، سرمحقق زلمی هيوادمل

## یوویشتم لوست

### د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | پښتو سفر نامې (یونلیکونه) | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د لوست مطلب به درک کړي.<br>– د یوه داستاني ژانر په توگه به د سفرنامې په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>– د سفر نامې په اړه به خپل معلومات نورو ته بیان کړای شي.<br>– د پښتو ژبې د نامتو لیکوالو د سفرنامو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– د متن لنډیز به په خپله ژبه وویلای شي.<br>– پوښتنو ته به مناسب ځوابونه په شفاهي او هم په لیکلي بڼه ورکړای شي.<br>– د متن د لغتونو معنا به وویلای شي.<br>– د لومړنۍ سفر نامې (یونلیک) په اړه به څو کرښې معلومات ولیکلای شي.<br>– زده کوونکي به د خپل ژوند د حالاتو د لیکلو سره مینه پیدا کړي او د خپل ژوند پیښې او حالات به د یوه داستان په بڼه ولیکي.<br>– د سفرنامې( یونلیک) توپیر به له نورو داستاني ډولونو څخه وکړای شي، چې د سفرنامو څخه پند واخلي او د خپل ژوند نیمگړتیاوو ته به ځیر شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه او خبرې. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تخته پاک، تباشیر، د امکان په صورت کې د ځینو لیکوالانو لیکلي سفر نامې (یونلیکونه) ټولگي ته راوړل. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، د ټولگي تنظیمول، د کورنۍ دندې کتنه او بیا په نوي لوست پیل کول. | ۴ دقیقې |
| د انگیزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي. او کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه ترسره کړي!<br>– تاسې کله سفر کړی او په سفر کې مو څه لیدلي دي؟<br>– کله مو د خپل سفر حالات لیکلي دي؟<br>– د سفر حالاتو لیکلو ښې ته څه وایې؟<br>– تاسې د پښتو کومه سفر نامه پېژنئ او لوستلې مو ده؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې لوست په خپله په مناسب غږ ولولي. | ـ زده کوونکي متن ته ځیر کېږي او غوږ نیسي، د نوو کلمو | |

<table>
<tr><td>ستونزمنې کلمې د تختې پرمخ وليکي. لومړی دې معنا له زده کوونکو څخه و پوښتي او د نه پوهېدو په صورت کې دې معناګانې پر تختې وليکي.</td><td>په معنا او مفهوم ځانونه پوهوي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې په څو زده کوونکو باندې په وار سره د متن ځينې ټوټې ولولي او له هر يوه څخه دې وغواړي چې د لوستل شوې ټوټې مقصد او مفهوم په خپله ژبه ووايي. ښوونکی دې زده کوونکي په ښو الفاظو سره وستايي.</td><td>– څو زده کوونکي په وار سره د متن ځينې ټوټې لولي او بيا يې په مفهوم خبرې کوي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وپوښتي چې په سفر نامه کې کوم شيان راځي؟</td><td>– زده کوونکي د پوښتنو په ځواب ويلو کې برخه اخلي او ځوابونه ورکوي. د نه پوهېدو په صورت کې يې ځواب د ښوونکي له خوا اوري.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي!<br>• د پښتو ژبې لومړنی يونليک کوم دی؟<br>• د پښتو سفر نامو د څو تنو ليکوالو نومونه واخلئ؟<br>• کومې سفر نامې پېژنئ په اړه يې معلومات ورکړئ؟<br>ښوونکی دې د زده کوونکو ځوابونه واوري او د نه پوهېدو په صورت کې دې ښوونکی ځواب ووايي.</td><td>– زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې زده کوونکي په څو ډلو ووېشي. هرې ډلې ته دې لاندې موضوعګانې ورکړي چې ځوابونه يې وليکي.<br>• لومړنۍ سفر نامې کومې او په څه ډول حالاتو کې رامنځته شوې؟<br>• که تاسې کوم سفر کړی وي، د خپل سفر حال له جزئياتو سره په کتابچو کې وليکئ.</td><td>–زده کوونکي په خپلو ډلو کې سپارل شوې دنده په يوازې توګه سرته رسوي.</td></tr>
<tr><td>– ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې يې وکاروي:<br>ټولنپوهنه، تحريک، عنعنات، غاصب.</td><td>– زده کوونکي لغتونه معنا او په مناسبو جملو کې کاروي.</td></tr>
<tr><td>–ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوستل شوي متن لنډيز په خپله ژبه ووايي.</td><td>– زده کوونکي د لوستل شوي متن لنډيز بيانوي.</td></tr>
<tr><td>– کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو په لومړي او دويم ساعت کې په خپله خو ښه کورنۍ دنده وټاکي او په دريمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وسپاري.</td><td>– زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوعګانې په کتابچو کې ليکي او په کورونو کې ورباندې کار کوي.</td></tr>
</table>

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**ژبه:** په معنا د قول، وینا، کلام

ژبه: د غږیزو غږو د غږونواو د دغو غږونو یو ځای کولو له لارې چې معناګانې او مفاهیم منځ ته راوړي د احساساتو او اندېښنو ځرګندولو او تفهیم ته وایي یا ژبه د پوهولو او راپوهولو وسیله ده.

عنعنات: مفرد شکل یې عنعنه ده، معنایې په لاندې ډول ده :

١–روایت،

٢– دود، رواج، عرف، لاره،

٣– په نظم او ترتیب سره د نیکونو او پلرونو د ویاړونو شرحه.

**ټولنپوهنه:** سوسیولوجي علم الاجتماع، ټولنپوهنه هغه پوهنه ده چې د ټولنې د مبداء، تکامل، قومونو، طبقاتو او بشري ډلو په اړه معلومات راکوي.

ټولنپوهنه یوه ترکیبي کلمه ده ټولنه + پوهنه = ټولنپوهنه.

بلخ: زموږ د ګران هېواد افغانستان یو شمالي ولایت دی. مساحت یې (١٥٦٢٦) کیلو متره دی او مرکزیې مزار شریف دی.

بلخي: بلخ ته منسوب، د بلخ اوسېدونکی.

بخارا: د ازبکستان هېواد په جمهوریت کې د یوه تاریخي ښار نوم دی.

سمرقند: په منځنۍ اسیا کې د ازبکستان هېواد یو مشهور او ډېر لرغونی ښار دی.

مسکو: د روسیې هېواد د یوه ولایت او مرکز نوم دی.

قفقاز: تور سمندرګي او د کسپین سمندرګي ترمنځ د روسیې یوه سیمه ده.

د تور سمندرګي او د کسپین سمندرګي ترمنځ په سویل ختیځې اروپاکې د غرو لړۍ چې ځینې خلک یې "قاف" یا کوه قاف هم بولي.

**اضافي معلومات:**

یونلیک (سفر نامه)

په ټولنیز ډول د یونلیک د پېژندنې په لړ کې بېلابېلو څېړونکو او ادب پوهانو بېلې بېلې توضیحي، تشریحي او څېړنېزې ځرګندونې وړاندې کړي، چې ډېرې یې سره ورته ټکي لري. دلته ځینې د دغه ژانر د پېژندنې له پاره را اخلو:

اروابناد اکاډمسین پوهاند عبدالشکور رشاد د سفر نامې د توضیحي او تشریحي پېژندنې په اړه لیکلي دي:

(( د ژوندانه په سفر کې جسماني سفرونه شته. له یوه ځایه بل ځای ته خلک ځي. ځمکه نغاړي، د یوه اقلیمه بل ته اوړي. له یوه ولسه بل ولس ته ځي. له دغو لارو او ځینې لاروي (ګرځندوی) چې په خپلو سفرونو کې څه ویني، اویا څه خواږه ترخه حالونه پرې راځي هغه ګوري او لیکي یې. د دوی د سفر پېښې او لیدنې خلک ډېرې پېرۍ وروسته هم په ځانګړې مینې لولي او کله کله عبرتونه لاهم ځنې اخلي.

د ادب دغه پیڅه په پارسي کې سفر نامه بلل کېږي. په پښتو ژبه کې ورته (یونلیک وایي)

(( دانواع ادبي وآثار ان در زبان فارسي)) لیکوال یې داسې راپېژني:

سفر نامه د ریپوټ یو ډول دی. چې لیکوال د هغې په کالب کې د هغې لیدنې کتنې د هغو سیمو او ځایونو د حالاتو په اړه چې سفر یې ورته کړی دی تشریح کوي او د هغو ځایونو د خلکو د دودونو، مذهبي، عنعنوو، ملي ژبو، تاریخي مانیو، کتابتونونو علمي او فرهنګې مرکزونو اوبه او هوا، جغرافیي موقیعیت او نورو ځانګړنو په اړه لوستونکو ته

معلومات ورکوي. د زرګاني اثر ليکوال يې په توضيحي او تشريحي بڼه پېژندنه داسې وړاندې کوي: تش دليدلو کتلو ځايونو ذکر او يادولو ته يونليک (سفر نامه) نه شو ويلی، تر هغه چې په کې د ليکوال تخيل نه وي شامل شوی. مطلب داچې په سفر کې د ليدلو کتلو ځيزونو، ځايونو د هغه سيمې يا هېواد د خلکو د ژوند دود، دهغه ځای اوبه او هوا او د جغرافيې يادونه په ادبي بڼه او انداز کې د خپلو احساساتو، عواطفو او جذباتو سره بيانولو ته يونليک ويل کېږي.
که د سفر نامې په اړه د پورتنيو او دې ته ورته نورو توضيحي، تشريحي او څېړنيزو پېژندنو ته وګورو، نو ډېر سره ورته ګډ ټکي او مفاهيم لري، که دغه ټول سره يو ځای کړو، په ټوليز ډول ورڅخه په لنډون سره داسې پېژندنه وړاندې کولای شو:
يونليک هغه ليکنی ادبي اثر دی چې سفر کوونکی، ګرځندوی او سيلاني، د خپل سفر ليدلی کتلی حالت، ځان پېښې او د هغو سيمو چې سفر يې ورته کړی، طبيعي، جغرافيوي او تاريخي څرنګوالی، د خلکو د ژوند دود، مذهبي عقايدو او ملي عنعنو او دودونو په اړه يې معلومات په کې ليکلي وي
يونليک د سفر د حالاتو ليکل دي. دا سفرونه به معمولاً انسان د علم او پوهې د ترلاسه کولو، د ديني فريضې له مخې او زيارت کولو (لکه حج او بيت الله شريف زيارت) د رسمي او سياسي ماموريت يادکار روزګار د پيدا کولو او يا به هم له يوې لوې وچې څخه بلې لويې وچې (براعظم) ته وي.
يوه مقوله ده وايي چې: (( که غواړې پوخ شې سفروکړه)) ربښتيا هم د انسان ژوند له ادم نه تر دې دمه په ستړ يا او سفر تېر شوی دی. د عادي خلکو سفر تېرېږي او هېرېږي، خو ليکوالان او شاعران په خپل سفر کې ډېر داسې څه ويني چې عادي ګرځندويان يې ليدو ته نه ځير کېږي. دوی د خپل سفر دا ژوند پېښې د قلم په ژبه خوندي کوي او ورپسې راتلونکو نسلونو ته يې د خپل سفر د لنډيز يا نچوړ په توګه پرېږدي.
په يونليکونو کې کولای شو چې د يوې سيمې يا د يوه هېواد د خلکو ټولنيز، سياسي، اقتصادي حالت او د هغې سيمې د څرنګوالي په اړه داسې معلومات ومومو چې هغه په تاريخي او جغرافيايي کتابونو کې نه شو موندلی. په دغو سفر نامو کې ترلاسه شوي معلومات د تاريخ پوهانو، ټولنپوهانو، جغرافيه پوهانو، بشر پېژندونکو او د نورو ټولنيزو علومو د څېړونکو لپاره ډېر غوره په زړه پورې پاخه او د لومړي لاس توکي برابروي.
د يونليک د ټولنيز ارزښت په اړه ويل کېږي: (( د يونليکونو څخه د يوه هېواد تهذيب، تمدن او پر مختګ، ادب، مذهب، تاريخ او جغرافيه، سياست کلتور ژوند او نورو ګڼو علومو توکي په لاس راځي.
**غلام حسن خان ساپی:** غلام حسن خان ساپی له او سنيوتکړه روښانفکرو او د ويښو پښتنوڅخه و. ځکه يې د نورو پښتنو د ويښوالي سره هم زياته مينه لر له. له همدې کبله د ده په ليکنو کې زياتره ولسي جذبات او ولسي نظريات شته.
ښاغلی ساپی لکه چې په خپله ليکي اديب او شاعر نه دی خو ليکونکی دی.
ساپی صاحب يوازې نثر ليکونکی و. دبښواصاحب په وينا ښاغلي ساپي چې څه ليکلي ښه روان او سم يې ليکلي او له هغو څخه د ده پښتني احساسات او دپښتني نړۍ سره د ده توده مينه په ښه توګه څرګنديږي.ترکومه ځايه چې ما د ده ليکنې لوستي دي ساپی صاحب د پښتانه ولس د ملي او ټولينز ژوند د ښه کېدو لپاره تر هر څه د مخه پوهنه او معارف لازم بولي او بيا ورپسې د اقتصادي ژوند سمون د پښتنود راتلونکي ښه ژوند بنسټ ګني. خو په دې دواړو لاروکې د روښانفکرو پښتنو او د هېواد د ويښو زلميانو زيات فعاليت ته ډېره اړتيا ښيي او دارزښت په سترګه ورته ګوري.
د ښاغلي ساپي صاحب زياتره ليکنې د کابل په مجله کې خپرې اوځينې نورې ليکنې يې په بېلا بېلو مجلوکې خپرې شوي دي.
**محمد نوازطاهر:** په ۱۹۳۴ ز کال د پېښور دملاکنډ ايجنسۍ کې زېږېدلی دی. تکړه ليکوال او شاعر دی. علمي، ادبي

او څېړنیز کتابونه یې لیکلي دي، چې ځینې یې دادي: لرغونی خوب، پرواز، وچه ځانګه، روهي ادب، تپه او ژوند. ډېرو کتابونو یې ادبي جایزې هم ګټلې دي
محمد نوازطاهرژوندی دی اواوس هم دادب په خدمت لګیا دی.
**نیک محمد پکتیاني:** د غلام جان احمدزي زوی چې په ۱۳۰۱ ل کال دپکتیا په میلن کلي کې زېږېدلی. د پښتو ژبې ښه لیکوال او حساس شاعردی. د ده اشعارو زیاته برخه د ده له حساس طبعیت څخه استازیتوب کوي. په اشعارو کې يې ملي جذبه ډېره لیدل کېږي. پکتیاني تر اووم ټولګي پوري په رسمي تو ګه زده کړې کړي او نورې زده کړې يې په خصوصي توګه ترسره کړي دي.
ښاغلي پکتیاني د هېواد په بېلا بېلو رسمي برخو کې بېلا بېلی دندې سرته رسولي دي. د ده زیاتره مقالې او اشعار دهېواد په ورځپاڼو او مجلو کې خپاره شوي دي. اوځینې مستقل آثار هم لري. ډېرکلونه پخوا وفات شوی دی .
**عبدالخالق خلیق:** عبدالخالق خلیق دحافظ عبدالحق زوی په خټه خټک افغان د پښتو ژبې مخلص لیکوال او پوخ شاعر دی. په ۱۳۱۳ ه کال چې د ۱۸۹۵ زکال سره سمون خوري په پېښور کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې يې دخپل کلي په ښوونځي کې تر سره کړي دي. عربی، پارسي دودیز علوم يې له بېلا بېلو استادانو څخه لوستي دي. بیایې د یوناني طب کتابونه ولوستل او وروسته يې په خپل کلي کې یو یوناني درملتون پرانیسته. ده له ماشومتوب څخه د پښتو ژبی له شعر او ادب سره مینه درلوده. طبابت يې پربښود او د خپلی ژبې خدمت ته يې ملا وتړله. په پښتو ژبه يې ډېرې ډرامې ولیکلې. یوه ډرامه يې دخدايي خدمتګار په نامه ولیکله. څه وخت د پښتو مجلې د چلوونکي په توګه وګمارل شو او دغه مجله يې په ښه توګه وچلوله .خلیق وفات شوی دی .نوموړي د هېواد په بېلا بېلو برخو کې دندې سرته رسولي دي. څه وخت يې په خپله مینه کتابونو چاپول او سوداګري يې پیل کړه.
**دوست شینواری:** ښاغلی دوست شینواری دسید عمر زوی، په خټه شینواری د پښتو یو نومیالی لیکوال او حساس شاعر دی. د۱۳۱۴ه ل کال په شاوخوا کې د ننګرهار د شینوارو دسیمې په هسکه مېنه کې زیږېدلی دی. د ده د لومړ نۍ زده کړې دوره له اته کلنۍ څخه پیل شوې ده. خپلې زده کړې يې په عربي دودیزو علومو کې پیل کړي دي. په۱۳۳۸ لمریز کال د کابل د عربي دارالعلوم څخه په لوړه درجه بریالی او فارغ التحصیل شو. او په همدې کال د(انیس) ورځپاڼې دپښتو څانګې د لیکونکي په توګه مقررشو. ښاغلي شینواري په پښتو روان نثر لیکه او خوږ شعر به يې وایه خو دشعر لرغونتیا يې تر نثر زیاته ده. د ده یو اثر چې ( سلګۍ) نومېږي په ۱۳۳۷ه کال کې په مطبوعاتي جوایز وکې د عبدالحی ګردیزي دریمه درجه جایزه ګټلې وه. او دوه ځلې نورهم په نثر او نظم کې دلومړۍ او دویمی مطبوعاتي جایزو په وړلو بریالی شوی دی. دوست وفات شوی دی اولاندې کتابونه يې لیکلي دي :
– افغانستان په اوستا کې
–دافغانستان ژبې اوتوکمونه
– دادب دتیورۍ اساسونه
– زړه پانګه
– نوې ویېپانګه
– طبي بوټي

**عبدالاکبرخان اکبر:** اکبرصاحب د عبدالقادرخان زوی دی. د اګست په ۱۹۰۰ ز کال په عمرزي نومي کلي کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې په خپل کلي کې تر سره کړې. او بیا په اسلامیه کالج کې داخل شو. خو چې د

سیاست په ډګر کې ننوتو، بیا تحصیل ورڅخه پاتې شو. ښاغلی اکبرخان د پښتو ژبې یو وتلی ډرامه لیکونکی او شاعر دی. د خداي خدمتګار، تربور، تعلیم جدید او تهذیب جدید، جونګړه، او کاروان روان دی. د ده مشهورې ډرامې دي. په دغو ډرامو کې ځینې چاپ شوي هم دي. د کلام ټولګه یې د (خواږه ترخه) په نو م یادیږي. عبدالاکبرخان اکبر وفات شوی دی.

**اخځلیکونه:**

ګران ښوونکي کولای شي چې د دې لوست د لا زیاتو معلوماتو لپاره له لاندې اخځلیکونو څخه ګټه واخلي:


۱_ هاشمي، څېړنوال سید محی الدین، د نثري ادب ډولونه، د افغانستان علومو اکاډمي، ۱۳۸۹ لمریز کال

۲_ همدا لیکوال، ادب پوهنه.

۳_ همدا لیکوال، د لیکوالی فن.

۴_ اوسني لیکوال، عبد الرووف بینوا

۵_ حبیب الله رفیع، زرینې څانګې، دعلومو اکاډیمي خپرونه

# دوه ویشتم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | معنوي ښایستونه صنعتونه | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د بدیع علم په تعریف به وپوهیږي.<br>– د بدیع علم د معنوي صنعتونو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د معنوي صنعتونو په اړه به په خپله ژبه معلومات سره له بېلگو وویلای شي.<br>– په شعرونو کې به معنوي صنعتونه وپېژني.<br>– پوښتنو ته به سم او مناسب ځوابونه ورکړای شي.<br>– په متن کې به ځانگړي نومونه، ستاینومونه، نومځري په نښه کړي او په جملوکې به یې وکارولی شي .<br>– د متن د پای فعالیتونه به سم ځواب کړای شي.<br>– د متن لنډیز به په خپله ژبه بیان کړای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز کار او یو کسیز کار. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، تخته، تخته پاک، تباشیر د امکان په صورت کې د بدیع او بیان نوي کتابونه. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، احوال پوښتنه، د کورنۍ دندې کتنه او په نوي لوست پیل کول. | ۴ دقیقې |
| د انگېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي او کولای شئ چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو سره شریکې کړي!<br>– تاسې کوم معنوي صنعت پېژنئ؟<br>– معنوي صنعتونه څه ته وایي؟ | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د څو شېبو لپاره نوی لوست په چوپتیا له ځان سره ولولي.<br>– ښوونکی دې په څو زده کوونکو نوی لوست په لوړ غږ ولولي. ښوونکی دې کوښښ وکړي چې کمزورو زده کوونکو ته په لوستلو کې ډېره برخه ورکړي.<br>– ښوونکی دې لوست په خپله ولولي او د معنوي صنعتونو | – زده کوونکي نوی لوست په پټه خوله له ځان سره لولي او د لوست په مفهوم ځانونه پوهوي.<br>– زده کوونکي په وار سره د نوي لوست یوه یوه برخه لولي.<br>– زده کوونکي متن ته په ځیر سره گوري او غوږ نیسي. د | |

| | |
|---|---|
| په اړه دې رڼا واچوي او ستونزمن الفاظ دې پر تخته وليکي او معنا دې کړي. | معنوي صنعتونو په اړه خپل معلومات بشپړوي او هم د ستونزمنو الفاظو په معنا او مفهوم ځانونه پوهوي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه د يوه ادبي صنعت تعريف له ياده ووايي ښوونکی دې تېروتنې ور اصلاح کړي. | – زده کوونکي په خپله خوښه هر يو، يو يو ادبي صنعت تعريف او له بېلگې سره وړاندې کوي او نور ورته غوږ نيسي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې دوه دوه تنه د تختې مخې ته راشي. يو تن زده کوونکی دې يو بيت پر تخته وليکي او بل زده کوونکی دې په کې ادبي صنعت په نښه کړي او د تېر وتنې په وخت کې دې نور زده کوونکي ورسره مرسته وکړي. | – دوه دوه تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راځي يو زده کوونکی يو بيت پر تخته ليکي او بل په کې ادبي صنعت په نښـــه کوي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړي<br>• د بديع علم څه ته وايي او له څه شي څخه بحث کوي؟<br>• د بديع د علم بنسټ ايښودونکی څوک و؟<br>• معنوي صنايع څه ته وايي؟<br>• د څو معنوي صنعتونو نومونه واخلئ؟ | – زده کوونکي پوښتنو ته اړين ځوابونه وايي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست دويم فعاليت يعنې شعر په غور سره ولولي اوپه هغه کې دې ادبي صنعت پيدا کړي او په کتابچو دې وليکي. | ــ زده کوونکي دويم فعاليت يعنې شعر لولي او بيا په کې ادبي صنعت په نښه او په کتابچو کې يې ليکي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په يوازې توگه په پټه خوله متن له ځان سره ولولي او بيا دې نومونه، صفتونه او نومځري په کې په نښه او په کتابچو کې دې وليکي.د تېروتنې په صورت کې دې ورسره مرسته وکړي. | ــ زده کوونکي په يوازې توگه متن لولي او نومونه، ستاينومونه او نومځري په کې نښه کوي او په کتابچو يې ليکي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د لوستل شوي متن څخه چې څه يې زده کړي په خپله ژبه نورو ته بيان کړي. | ــ زده کوونکي په خپله خوښه د لوستل شوي متن مهم ټکي تشريح کوي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دريمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري. | ــ زده کوونکي د سپارل شوي کورنۍ دندې سرليک په کتابچو کې ليکي او په کور کې يې بشپړوي. |

**اضافي معلومات:**

**بديع:**

دا علم د لومړي ځل لپاره په دريمه هجري پېړۍ کې عبدالله بن معتز له خوا منځ ته راغی چې وروسته نورو پوهانو او

عالمانو د دې علم په اړه څېړنې کړي دي. څنګه چې په عربي کې له ځانه د نوي شي رايستلو ته بداعت وايي نو ځکه يې په دغه علم د بديع (نوي راويستلي) علم نوم کېښود.
عبدالله بن معتز چې په ۲۹۶هـ کال کې مړ شوی دی تر ټولو د مخه يې د بديع د علم په اړه د البديع نومي کتاب تاليف کړی دی. په دې کتاب کې يې د بديع ۱۷ فنونه بيان کړي دي. له عبدالله څخه وروسته د ده معاصر قدامه بن جعفر چې په ۳۱۰هـ کال کې مړ شوی دی د نقد قدامه په نوم يو کتاب وليکه چې د عبدالله اوه لس فنونو ته يې ديارلس نور فنون هم ور زيات کړل. د عباسي او قدامه څخه وروسته ابوهلال عسکري چې په ۳۹۵هـ کال کې مړ دی. دې ميدان ته په خپل نوبت را ودانګل او خپل مشهور کتاب الفاعنين يې په نظم او نثر کې تاليف کړ او د البديع ۳۵ فنونه يې په کې راټول کړل. همدارنګه ابو هلال عسکري په خپل دې کتاب کې د علوم البلاغت نور قواعد لکه: فصاحت، بلاغت، اعجاز، اتناب او داسې نور بيان کړل. د ابو هلال عسکري دغه کتاب لومړی کتاب دی چې د علوم البلاغت درې واړه برخې ( بديع، بيان او معاني ته اشاره په کې شوې ده.

د بديع د علم تعريف: په دغه علم سره د وينا ښکلا او د تحسين نښې او ډولونه پيژندل کېږي.
يا په بل عبارت:- بديع هغه پوهه ده چې د کلام د ښايست او په نوي طرز د وينا طريقې او لارې ورباندې معلومېږي.
دغه ښايستونه يا بديعې صنايع په دوه ډوله دي
۱- معنوي صنايع
۲- لفظي صنايع
که دغه صنعتونو په معنا پورې اړه درلوده معنوي صنعتونه دي او که په لفظ پورې يې اړه لرله لفظي صنايع بلل کېږي.
دغه صنعتونه هم په نثري مثالونو او هم په شعري مثالونو کې کارول کېږي، خو دا چې د شعر ښايست ډېر دی نو ځکه شعري بېلګې ډېرې لري.
معنوي ښايستونه (صنايع)
هغه ښايستونه يا صنايع دي چې په معنا پورې اړه لري او لفظي صنايع هغه دي چې په لفظ پورې اړه لري .
د معنوي صنعتونو ډولونه په لاندې توګه دي:
الف: طباق: په يوه کلام کې د معنا له مخې چې په متقابل الفاظ لکه: رڼا او تياره، شپه او ورځ، ژړا او خندا، مرګ او ژوند، خوشحالي او خفګان، تور او سپين، ښه او بد او داسې نور يو ځای سره راوړل شي طباق يې بولي. د پښتو ادب نوميالی شاعر عبدالقادرخان په خپل شعر کې د طباق د ښايست مراعات داسې کړی دی
بيت: په خندا خندا چې تلمه يې ديدار ته
اوس يې درومم په ژړا ژړا مزار ته
په پورته بيت کې د خندا او ژړا د کلمو په ذکر کې طباق موجود دی.
د طباق ډولونه:- طباق په درې ډوله دي
**۱ــ اسمي طباق:**
چې د دوو نومونو يا صفتونو ترمنځ تقابل موجود وي لکه په دې متل کې:
انسان تر ګل نازک، تر کاڼي کلک دی.
**۲ــ فعلي طباق:**
که د دوو فعلونو ترمنځ تقابل يا تضاد موجود وي فعلي طباق يې بولي لکه:

ټولول، کېښودل د زړو ښځې کاندي – ورکول، بازل وي خوی خصلت د نرو
په پورته بیت کې ټولول – کېښودل، ورکول – او بازل ټول فعلونه دي او د دوی په منځ کې تضاد شتون لري چې دې ته فعلي طباق وايي او همدارنګه د ښځې او نر تر منځ هم طباق شتون لري چې دې ته اسمي طباق وايي دا ځکه چې نر او ښځه نومونه دي.

**۳_ ایجابي او سلبي طباق:**
که دوه فعلونه یا صفتونه له یوې مادې څخه مثبت او منفي یا امر او نهې په صورت راوړل شي ایجابي او سلبي طباق یې بولي.
لکه: له مړو اوبو ووېرېږه له تېزو اوبو مه وېرېږه
په دې بېلګه کې ووېرېږه او مه وېرېږه تقابل سره لري یا تضاد لري، خو څرنګه چې دواړه فعلونه له یوې مادې څخه دي، نو ایجابي او سلبي طباق یې بولي.

**لف او نشر:**
که شاعر په یوه مسره یا یوه بیت کې ځینې مطالب د اجمال په صورت کې راوړي او په بله مسره یا بیت کې هغه مبهم او اجمالي ټکي روښانه کړي لف او نشر یې بولي.
لکه: مخ دې که ګلشن دی یا څراغ دی یا سورګل – زه باندې بورایم یا پتنګ یم یا بلبل
شاعر د پورته بیت په لومړۍ مسره کې ګلشن، څراغ، سورګل ذکر کړي دي، بیایې په دویمه مسره کې د هغوی مطابق بورا، پتنګ او بلبل هم راوړي دي
نوکه یو شاعر په خپل شعر کې د غسې مطالب راوړي د صنعت په لحاظ یې د لف او نشر مراعات کړی دی.
**ایهام یا توریه:**
د ایهام لغوي معنا په وهم او ګومان کې اچول دي. په ادبي اصطلاح کې یو شاعر دوه یا زیاتې معنا لرونکي کلمې په خپله وینا کې داسې راوړي چې د لوستونکي یا اورېدونکي ذهن غیر مطلوبې ظاهري معنا ته لاړ شي خو مطلوبه معنا یې بله وي.
لکه: زما او ستا په منځ کې لار د قاصد نشته – د رازونو کیسې اوس واړه پر باد شوې
په پورته بیت کې د برباد د کلمې اصلي معنا وران او ویجاړ دی، چې دلته غیرې مطلوبه ده او مطلوبه معنا یې چې باد د قاصد په توګه رازونه یو بل ته رسوي راوړل شوې.
د ایهام یا توریې ډولونه ۱– مجرده توریه ۲– مرشحه توریه
مجرده توریه:
هغه توریه ده چې د قریبې (ظاهري) معنا سره متناسبې کلمې په وینا کې موجودې نه وي لکه سید رسول رسا چې وايي:
چې د زړه داور په سوز مې سمندر کړې – داسې ژوند زه په هردم جاوېدان غواړم
په پورته بیت کې د سمندر قریبه یا نژدې معنا لوی سیند دی، خو په دې ځای کې له سمندر څخه پورته معنا لوی سیند مطلب نه دی، بلکې د سمندر له کلمې څخه هغه چینجی مقصد دی چې په اور کې ژوند کوي.
**رجوع:**
په لغت کې بېرته راګرځېدلو ته وايي او په ادبي اصطلاح کې هغه صنعت دی، چې یو څوک یوه خبره یا مطلب یو وار

اظهار کړي او بیا په وروستۍ جمله یا نیم بیتي کې د یوه ځانګړي غرض لپاره خپله خبره باطله کړي او د خپل مطلب څخه وګرځي رجوع بلل کېږي.
لکه خوشحال بابا چې وایي.

که ښه وایم وچاته هم یې بدنیسي په زړه کې – یا بخت دی د مغلو یا زما څه عقل کم دی

نه بخت دی د مغلو نه زما څه عقل کم دی – دا کل واړه پیري ده چې مې کار درهم برهم دی

که پورته ذکر شوي بیتونه وکتل شي خوشحال خان خټک یو ځل خپلې کم بختۍ او کم عقلۍ ته اشاره کوي او وروسته بیا د خپل مطلب څخه ګرځي او د هرڅه علت کمزوري او سپین ږیرتوب بولي، چې دغه ډول ښایست ته رجوع وایي.

**عارفانه تجاهل:**

د یو نزاکت او لطافت لپاره شاعر یا لیکونکی په شي ځان نا خبره اچوي که څه هم شاعر په هغه شي باندې ښه پوه وي تجاهل العارف بلل کېږي لکه علي خان چې وایي:–

دا د دلبر مخ دی چې له شاله نیم لیده شي – یا ژیړوتلی لمر دی چې لیده شي نیم له غره

په پورته بیت کې معشوقې خپل ښایسته مخ په ژیړ شال پټ کړی دی، خو مخ یې لږ غوندې ښایسته ترې ښکاره کېږي، چې د ژیړ شال ژیړ انځورورباندې پرېوتی دی.
شاعر وایي چې دغه ښایسته کناره چې زه یې وینم د مازدیګر لمر دی او که د محبوب مخ.
مدعا او مثل:
هغه ادبي صنعت دی چې شاعر په یوه نیم بیتي کې یو مطلب راوړي او په بل نیم بیتي کې د خپل مطلب د اثبات لپاره یو بهرنی مثال راوړي.

نصیحت په غافلانو اثر نه کا – د سړې او سپینې خوشې ټکول دي

د خواجه نصیحت ځکه اثر نه کا – په یوه رنځور د بل نه شي علاج

شاعر په پورته بیتونو کې په لومړیو نیم بیتیو کې خپلې ادعاګانې ذکر کړي او بیا یې د دوی د اثبات لپاره یو یو مثل راوړی دی چې دغسې صنعت ته مدعا او مثل وایي.

**ارسال المثل:**

هغه ادبي صنعت ته ویل کېږي چې شاعر په یوه بیت کې یو متل راوړي.

څه ښه وایي چې یاد ما کړې موږ دې خدای کړه – سمندر چې په ویالو شي هم وچیږي

که پورته بیت ته ځیر شو هرنیم بیتي یې یو متل دی. نو شاعر په یوه بیت کې دوه متله راوړي دي چې دغسې صنعت ته ارسال المثلین وایي.

**تلمیح:**

په لغت کې په مالګه کولو ته وایي. په اصطلاح کې هغه ادبي صنعت دی چې شاعر په خپل نظم کې یو حکایت یا کیسې ته اشاره کړې وي.

ابراهیم چې اسماعیل ته تیغ تیارکړ

اسماعیل اباونکړه په دا چم

په پورته بیت کې ګورو چې شاعر د لنډيز په توګه د ابراهیم علیه السلام او اسماعیل علیه السلام کیسې ته اشاره کړې ده، چې دغه ډول صنعت ته تلمیح وایي.

**مبالغه:**

که یو شاعر د یوه شي ستاینه تر خپلې اندازې زیاته وکړي او د هغه ښه والی او بدوالی تصدیق یا تکذیب ته قوت ورکړي مبالغه بلل کېږي.

مبالغه په درې ډوله ده

**تبلیغ:**

د مبالغې هغه شکل دی چې مدعا هم د عقل او هم د عادت له مخې امکان ولري. لکه خوشحال بابا چې وایي:.

د خوشحال سره که کیني یو ځو کاله – دا د غره خټک به واړه شاعران شي.

په پورته بیت کې د غره خټک ټول شاعران کول په هغه صورت کې چې ځو کاله د خوشحال بابا سره ناسته او ولاړه ولري د عقل او عادت له مخې امکان لري نو د مبالغې دغه شکل ته تبلیغ وایي.

**اغراق:**

د مبالغې هغه شکل دی چې مدعا د عقل له مخې امکان ولري خو د عادت له مخې ممکنه نه وي. لکه: کامګار خان چې وایي:

چې تا له یې له یوسف سره ستا حسن

ترازو پسې آسمان ته مشتري ولاړ

په پورته بیت کې شاعر د هلال څخه د اس نعل جوړ کړی او د آسمان له ستورو څخه یې مېخونه جوړ کړي، چې دا ډول مبالغې ته اغراق وایي. د مبالغې دغه ډول شاعران او ادیبان هغه وخت خوښوي چې یوازې نزاکت او لطافت پکې موجود وي

**۳_ غلو:**

د مبالغې هغه شکل دی، چې مدعا هم د عقل او هم د عادت له مخې غیر ممکنه وي. لکه: علي خان چې وایي:

غم یې هسې ناتوان کړم په وېښته له ځایه لویږم

زړه مې یوه وړه دانه د غوښت یاد ږدن شوه

دومره کمزوری کیدل چې په وېښته د ځایه ولویږي چې عقلاً او عادتاً ناممکنه ده. دا ډول ته غلو ویل کېږي.

**براعت الاستهلال:**

په فصاحت کې تر سیالانو لوړېدلو ته وایي او استهلال په لغت کې د نوې میاشتې کتل دي.

په اصطلاح کې هغه مناسبت ته براعت الاستهلال وایي چې د قصیدې (بوللې) یا مقابلې یا کتاب په شروع کې د وینا له اصلي غایې او مقصود سره موجود وي.

د ساري په توګه حمید ماشوخېل د شاه ګدا د کیسې شروع داسې کړې ده:

دا اغاز مې په نامه د هغه خدای دی

چې یې نوم ګره کشای د شاه ګدای دی

**اخځلیکونه:**

ښاغلي ښوونکي کولای شي چې د زیاتو معلوماتو د لاسته راوړلو لپاره له لاندې اخځلیکونو څخه ګټه واخلي!


۱_ ادبي فنون (بدیع او بیان) ،مؤلف پوهنمل محمد اقا شېرزاد،کابل ۱۳۸۴ لمریز کال.

۲_ فضلیات (د پښتو ادبي اصطلاحات)،خټک، فضل میر.

۳_ پنهان، حاجي فضل محمد، ادبي ارمغان، ۱۳۸۱ لمریز کال

## درويشتم لوست

**د تدريس وخت**: **د اونۍ پښتو درسي ساعتونه**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د چاپيريال ساتنه | |
| **د زده کړې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتې) موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخو ته ورسيږي:<br>– د چاپيريال ساتنې په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– د چاپيريال ساتنې سره به مينه پيدا کړي او د خپل چاپيريال د پاک ساتلو په فکر کې به شي.<br>– د چاپيريال مهم توکي به وپيژني او د چاپيريال ساتنې د ارزښت په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– د چاپيريال ساتنې د لوست پوښتنو ته به مناسب ځوابونه وويلی شي.<br>– په خپلواک ډول به د متن د پای فعاليتونه حل کړای شي. | |
| **د تدريس لارې** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه. | |
| **د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي** | کتاب، تخته، تخته پاک، تباشير او د امکان په صورت کې د چاپيريال ساتنې په اړوند انځوريز پوسترونه. | |
| **د ارزولو لارې او وسيلې** | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| **د زده کړې او تدريس فعاليتونه** | سلام اچول، د ټولګي تنظيمول، د کورنۍ دندې کتنه او بيا په نوي لوست پيل کول. | ۴ دقيقې |
| **د انګيزې رامنځته کول** | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل کړي. او کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو سره شريکې کړي!<br>– ستاسو په اند چاپيريال څه ته وايي؟<br>– موږ څه ډول چاپيريال ته اړتيا لرو؟<br>– د چاپيريال ساتنې په وړاندې زموږ مسووليت څه دی؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې د لوست په اړوند انځوريز پوسترونه د تختې پرمخ وځړوي. | – زده کوونکي انځورونو ته ځير کېږي او د موضوع په شاوخوا فکر کوي. | |
| – ښوونکی دې لوست برخه، برخه په څو زده کوونکو په وار سره ولولي. | – څو زده کوونکي دلوست يوه يوه برخه په وار سره لولي. | |
| – ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست په مطلب خبرې وکړي. د اړتيا په صورت کې دې ښوونکی ورسره پوره مرسته وکړي. | – زده کوونکي په وار سره د لوست د مطلب په اړه خپل معلومات نورو ته وړاندې کوي. | |
| – ښوونکی دې لوست په خپله په مناسب غږ ولولي. هغه | – زده کوونکي متن په ځير سره ګوري او ورته ښه غوږ | |

| | |
|---|---|
| کلمې دې پرتخته ولیکي چې زده کوونکي یې په معنا او مفهوم پوه نه وي. | نیسي، د ستونزمنو کلمو په معنا او مفهوم ځانونه پوهوي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن په چوپه خوله ولولي او بیادې لاندې پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.<br>• په چاپېریال ساتنه کې کومو موضوعاتو ته باید پاملرنه وشي؟<br>• د چاپېریال د توکو ترمنځ څه ډول اړیکې دي؟<br>• که ځنګلونه ووهل شي څه زیانونه رامنځته کېږي؟<br>• له طبیعي توکو څخه څه ډول ګټه اخیستل په کار ده؟ | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم لومړی متن په چوپه خوله لولي او بیا پوښتنو ته مناسب ځوابونه ورکوي او هغه په کتابچو کې لیکي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو ووېشي. د یوې ډلې څو زده کوونکي دې د چاپېریال د پاکۍ په اړه خبرې وکړي. د بلې ډلې څو زده کوونکي دې د چاپېریال د پاک نه ساتلو په اړه خبرې وکړي. په څو کرښو کې دې خپل معلومات ولیکي. اوبیا ټولګي ته دې واوروي. | – څو زده کوونکي په وار سره د نوموړو موضوعګانو په اړه خبرې کوي او ډلییز فعالیتونه سرته رسوي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وپوښتي چې موږ د چاپېریال پر وړاندې څه مسوولیتونه لرو؟ | – څو زده کوونکي په خپله خوښه د چاپېریال ساتنې په اړه چې کوم مسولیتونه لري په وارسره خپل نظرونه او معلومات وړاندې کوي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وپوښتي چې خپل کور، کوڅې، ښوونځي او ښار څنګه وساتو؟ د زده کوونکو ځوابونه دې واوري. د ناسمو ځوابونو په اوربدو سره دې ښوونکی سم ځواب ورکړي. | – زده کوونکي په وار سره خپل ځوابونه وايي. |
| ـ کورني دنده: ښوونکی دې د لوست په لومړي او دویم ساعت کې زده کوونکو ته په خپله خوښه کورنۍ دنده وټاکي او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده ورسپاري. | ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع په کتابچو کې لیکي او په کور کې پرې کار کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

فرهنګي چاپېریال: د علم، پوهې او معرفت چاپېریال.

اقتصاد: شته ،شتمني.

اقتصاد: د یوې ټولنې د یوې ټاکلې مرحلې د تولیدي اړیکو او تولیدي قواوو مجموعې ته وايي.

اقتصاد: هغه پوهنه چې تولید او تولیدي اړیکې څېړي.

ښکلا: ښایست، حسن، ډول، جمال، هغه صفت او ځانګړنه چې په یو شي کې ښکاره شي یا حس او درک شي.

طبیعي ښکلا: په طبیعت پورې اړوند ښایست او ښکلا.

اوبه څه شی دي؟

اوبه د الله جل جلاله له ستر نعمتونو څخه کڼل کېږي، چې بهیدونکی، بې رنګه، بې بویه او له ځانګړي خوندڅخه برخمنې دي. د دوو برخو هایدروجن او یوې برخې اکسیجن څخه جوړې دي. اوبو د ځمکې ۳\۴ برخه نیولې ده. د حرارت په ۱۰۰ درجې کې ایشي او د سانتي ګرېډ په صفر درجه کې ( منجمد کېږي). د ځینو اوبو خوند ښه نه وي دا ځکه چې د ځمکې ژوره سطحه د ځینو کیمیاوي توکو درلودونکې ده.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**د چاپېریال ساتنه**

په هغه ځای کې چې انسانان ژوند کوي د ژوند چاپیریال نومیږي. د انسانانو ټولې اړتیاوې له چاپیریال څخه پوره کېږي. که غواړو چې د ژوند چاپیریال مو روغ او سالم وي او د ښه چاپیریال لرونکي و اوسو، نو د چاپیریال په ساتنه کې باید ډېره پاملرنه وکړو. ځکه د ټولو انسانانو ژوند په چاپیریال پورې تړلی دی. د چاپیریال ساتنه د ټولو خلکو دیني او ټولنیزه دنده ده.

د چاپیریال ساتنې لپاره لومړی باید د چاپیریال د ګټو او ارزښت په اړه د خلکو پوهېدنه تر ټولو اړینه خبره ده. د ژوند چاپیریال ته د نه پاملرنې او د له منځه تللو لامل د چاپیریال له ګټو او ارزښت څخه زموږ د خلکو بې خبري ده. دا یوه څرګنده خبره ده چې زموږ هېوادوال په سلو کې ۹۷ فیصده د سواد له زده کړې څخه بې برخې دي، نو د ژوند چاپیریال د له منځه وړلو او نه پاملرنې یو مهم لامل همدا بې سوادي ده. هر څومره چې د یوه هیواد وګړي د سواد او پوهې څخه برخمن وي. په هماغه اندازه یې د ژوند چاپیریال هم ښه او نېکمرغه وي. دا د ټولو هېوادوالو په تېره بیا د پوهو خلکو دیني او ټولنیزه دنده ده، چې د چاپیریال ساتنې په اړه تر خپل وسې او توان له خپلو نژدې ملګرو سره د چاپیریال د ګټو او ارزښت په اړه خبرې وکړي. ترڅو خلک په دې برخه کې پوهه ترلاسه کړي او د ژوند چاپیریال ته په کلکه پاملرنه وکړي.

د ساري په توګه: ځنګلونه چې الله جل جلاله په وړیا توګه په موږ را لورولي. زموږ د انسانانو، څارویو او مرغانو لپاره ډېر ګټور دي. که چېرې دغه شتمنۍ ته پاملرنه ونه شي او بې ځایه پرې شي. نه یوازې دا چې د چاپیریال ښکلا او سمسورتیا له منځه ځي، بلکې ځنګلي مرغان او ژوي هم له منځه ځي. هوا ناوړه کېږي او نور.... که غواړو چې ځنګلونه مو له منځه لاړ نه شي او زموږ چاپیریال ته زیان ونه رسیږي پکار ده چې دغه طبعي شتمنۍ ته په کلکه پاملرنه وکړو. د چاپیریال ساتنې چارواکي باید په کلکه د ځنګلونو ساتنې ته پاملرنه وکړي، ځکه ځنګلونه د ټول هېواد ملي شتمني ده او د دغې ملي شتمنۍ څخه د اړتیا وړ شیان لکه لرګي او نور لاس ته راځي د اړتیا وړ شیان ترې جوړیږي. د ځنګلونو شتوالی هوا پاکوي. د سېلابونو مخنیوی کوي. ښکلا او سمسورتیا رامنځته کوي. مرغان او وحشي څاروي زیاتیږي.

همدا راز اوبه چې د الله جل جلاله یو لوی نعمت دی. د ټولو ژوندیو موجوداتو د پایښت لپاره یوه ا ړینه او حتمي ماده ده، ځکه ټول ژوندي موجودات د ژوند کولو لپاره اوبو ته اړتیا لري. بې له اوبو څخه ژوند ناممکن دی. موږ باید د دې لوی نعمت په ارزښت او ګټو وپوهیږو. بې ځایه یې ونه لګوو. په زېرمه کولو، پاک ساتنه کې یې باید زیاته پاملرنه وکړو. ځکه که چېرې ناپاکې اوبه استعمال کړو په ناروغۍ اخته کېږو او بیا خپل ورځني کارونه په سمه توګه نشو سرته رسولای.

**اخځلیکونه:**

په افغانستان کې چاپیریال ته ور پیښ خطرونه، پوهنمل شیراحمد ګردیوال، دافغانستان د مطالعاتو مرکز، دانش کتابتون، ۱۳۷۸هـــ.ش. کال

# څلرویشتم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د هوتکو ادبي دربار | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنيتي) موخې | د دې لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د هوتکو د ادبي دربار په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>– د هوتکو د ادبي دربار د ځينو ليکوالانو او شاعرانو په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– د متن لنډيز به په خپله ژبه وويلی شي.<br>– پوښتنو ته به مناسب ځوابونه وويلی شي.<br>– د هوتکو د ادبي دربار په اړه به معلومات وليکلای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه. | |
| دتدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، تخته، تخته پاک، تباشير د امکان په صورت کې د هوتکو د دربار د ځينو ليکوالانو او شاعرانو انځورونه او آثار. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، د ټولګي تنظيمول د کورنۍ دندې کتنه او بيا په نوي لوست پيل کول. | ۴ دقيقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل کړي. کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو سره شريکې کړي!<br>– آيا د هوتکو په اړه مو څه اورېدلي دي؟<br>– په هوتکيانو کې کوم شاعر پېژنئ؟<br>– شاه حسين هوتک خپلې ژبې او ادب ته کوم کارونه کړي دي؟<br>– د ميرويس خان هوتک په کورنۍ کې کوم شاعران پيژنئ نومونه يې واخلئ؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د څو شيبو لپاره د لوست ټاکلې برخه په چوپتيا له ځان سره ولولي او مشکل الفاظ په نښه کړي.<br>– ښوونکی دې په څو زده کوونکو د متن يوه يوه برخه د کتاب له مخې ولولي . ستونزمن الفاظ دې د تختې پرمخ وليکي. د لوستلو وروسته دې د ستونزمنو الفاظو د معنا پوښتنه وکړي او ځوابونه دې پرتختې وليکي.<br>– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي او د زده کوونکو ځوابونو ته دې پاملرنه وکړي. د | – زده کوونکي دې د نوي لوست ټاکلې برخه په چوپه خوله له ځان سره ولولي او ستونزمن کلمات دې په نښه کړي.<br>– څو زده کوونکي په وار سره د متن يوه يوه برخه لولي. د کلمو په معنا کولو کې برخه اخلي چې د کلمو په معنا وپوهيږي.<br>– زده کوونکي په ځانګړې مينې سره د پوښتنو په ځواب ويلو کې ونډه اخلي او مناسب ځوابونه وايي. | |

| | |
|---|---|
| نه پوهېدو په صورت کې دې د پوښتنې ځواب په خپلــه ووايي.<br>• میرویس نیکه څه ډول هېواد د پردیو اشغالګرو څخــه خلاص کړ؟<br>• ادبي دربار د چا په وخت کې جوړ شو او څه کارونــه يې سرته ورسول؟<br>• د ادبي دربار کوم پوهان او شاعران پېژنئ نومونه يــې واخلئ؟ | |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې هــر يو په ځانګړې توګه د هوتکو د دوران مهم ادبي کارونــه په يو پراګراف کې وليکي او بيا دې په وار سره ولولي. | – زده کوونکي په يوازې توګه د هوتکو د مهمــو ادبــي کارونو په اړه يو پراګراف ليکي او بيا يې لولي. |
| – ښوونکی دې له ځو زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه د هوتکيانو هغه خدمتونه په شفاهي ډول ووايي چې ژبې او ادب ته يې کړي دي. | –زده کوونکي په خپله خوښه د هوتکيانو د ادبي خــدمتونو په اړه معلومات وړاندې کوي. |
| – ښوونکی زده کوونکي په دوه ډلو ووېشي يوه ډلــه دې د دغه وخت د شاعرانو نومونه واخلي او بلــه ډلــه دې د دغه شاعرانو د کتابونو نومونه ووايي. | – زده کوونکي په دوو ډلو وېشل کېــږي. يــوه ډلــه د شاعرانو نومونه او بله ډله د هغوی د کتابونو نومونه اخلي. |
| – کورنۍ دنده: ښوونکی دې پــه لــومړي او دويــم درســي ساعت کې په خپله خوښه زده کوونکو ته کورنۍ دنده وټــاکي او په دريمه ورځ دې دلوست دپای کورنۍ دنده ورکړي. | – زده کوونکي د کورنۍ دندې سپارل شوې موضوع پــه خپلو کتابچو کې ليکي او هغه په کورکې بشپړوې. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**پټه خزانه:** د پښتو ژبې يو لرغونی کتاب دی. محمد هوتک په ۱۱۴۱–۴۲ ه کې ليکلی دی. پټه خزانه محمد هوتک د خپل وخت د فرهنګ پالونکي واکمن شاه حسين هوتک په غوښتنې تاليف کړې.

**کوکران:** په کندهار کې د يوې سيمې نوم دی.

**کوېټه:** کوټه: د سويلي پښتونستان «کوېټې او پښين» يوه برخه ده. لوېديز او شمال ته يې افغانستان، لمرختو تــه يــې د سيند ضلعه او ږوب او سويل ته يې د بولان دره ده. د کوېټې ټول اوسېدونکي پښتانه او په پښتو ژبه خبرې کوي.

**ملتان:** په اوسني پنجاب کې د يوښار نوم دی

**اديبان:** مفرد شکل يې اديب دی. جمع يې اديبان يعنې د ادبياتو عالم او پوه، د ادبياتو پوهان او ليکوالان .

**مرثيه:** عربي کلمه ده چې په پښتو ژبه کې ورته ويرنه وايي.

**ارګ:** کلا، د پاچا، استوګنځی، شاهي مانۍ.

**حماسه:** د ادبياتو د نظم او نثر يو موضوعي ډول دي چې د زړورتوب په معنا ده. په حماسه کې جنګــي مســئلې پــه داستاني ډول بيانيږي. د پښتو ژبې د حماسو ليکل له ډېرو پخوا او لر غونو و ختونو څخه پيل شوي دي. حماسې ډېــر ډولونه لري: تاريخي حماسې، عشقي حماسې ديني يا مذهبي حماسې.

**تجنيس:** هم جنس کېدل، له يوه جنس سره يو ځای کول، د بديع علم په اصطلاح تجنيس هغه صنعت دی چې په کــې هم شکله يا متجانسې کلمې په بېلا بېلو معناوو سره راوړلی شي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

میرویس خان نیکه زموږ د ګران هېواد هغه ننګیالی، ستر او ملي شخصیت دی چې په خپله واکمنۍ کې یې نه یوازې دا چې د ظالمانو او د ظالم ګرګین پر وړاندې ملي پاڅون وکړ او د خپلو هېوادوالو په ملاتړ یې په ۱۱۱۹هـ کال کندهار د هغه له ظلمونو او تیریو څخه وژغوره، بلکې یو علم دوست او فرهنګپال مشر هم و. میرویس نیکه د پښتو ژبې او ادب سره زیاته مینه درلوده او په دغه لار کې یې ستر خدمتونه کړي. له (۱۱۱۹)هـ کال څخه وروسته د هوتکو د پاچاهۍ په دې غوره دوره کې ادبي دربار رامنځ ته شو. لیکوالان، عالمان او شاعران به په کې له انعامونو څخه برخمن کېدل. د هوتکو د کورنۍ ملي مشر میرویس خان هوتک به د پښتو ژبې د نامتو شاعر صوفي عبدالرحمن بابا شعرونه تل لوستل. د دغه فرهنګپال شخصیت مور مېرمن نازو انا هم د پښتو ژبې ډېره نازکخیاله شاعره وه چې د شعرونو دیوان یې دوه زره بیتونه درلودل موږ ته یې یوازې یوه څلوریزه راپاتې ده.

د میرویس خان نیکه له مړینې وروسته د ده زوی شاه محمود هوتک واکمن شو. ده چې کله اصفهان ونیوه او بیا هلته پاتې شو، نو په کندهار کې یې خپل ورور شاه حسین هوتک پاچا کړ. شاه حسین هوتک یو عادل، زړه ور او مېړنی پاچا و، چې د خپلې واکمنۍ لمنه یې ډېره پراخه کړه. دی یو فرهنګپاله شخصیت او د پښتو ژبې پوخ شاعر هم و.

ده په پښتو ژبه ډېر شعرونه ویلي دي. د پښتو ژبې ادب او ادبیاتو سره یې زیاته مینه درلوده. ده هم په خپل وار سره ادب، شعر او شاعرۍ ته زیاته پاملرنه وکړه. په خپل دربار کې یې عالمان او شاعران راټولول او هغوی به یې ستایل.

د هغه وخت د افضل العلما ملایار محمد هوتک په شان عالمان د ده په دربار کې روزل کېدل. ملا یار محمد هوتک د شاه حسین هوتک استاد هم و. د ده په واکمنۍ کې یې د پښتو ادبیاتو په لار کې ډېر خدمتونه کړي.د فقهې په برخه کې یې د (مسایل ارکان خمسة) نومی کتاب لیکلی و.

د شاه حسین هوتک د دربار بل عالم ملا محمد یونس د ملا محمد اکبر زوی و.نوموړي عالم د ( جامع الفرایض) په نوم په پښتو ژبه یو کتاب لیکلی و. د دغه دربار بل عالم زعفران تره کی د شاه حسین هوتک د زوی استاد و،چې په حکمت، ریاضي، او طب کې یې د ګلدسته زعفران په نوم کتاب لیکلی و. څنګه چې مخکې یادونه وشوه د هوتکو د کورنۍ غړو د علم او ادب سره خورا زیاته مینه درلوده اوپه دغه لاره کې یې د قدر وړ خدمتونه کړي دي. په دې برخه کې به د هوتکیانو د واکمنۍ په وخت کې د څو نامتو شاعرانو او لیکوالانو یادونه وکړو.

**د هوتکیانو د دورې مشاهیر:**

**بهادر خان:**بهادر خان د کندهار اوسېدونکی د شاه حسین هوتک د دربار نومیالی ستر او عالم سړی و. بهادر خان د شاه حسین هوتک په وخت کې د لښکرو مشر و او د شال او ږوب کلاوې یې ونیولې. په ولس او خلکو کې د ښه نوم او عزت خاوند او ډېر مهربان و. شاه حسین هوتک به د ورور او ولسي خلکو به د امیر الامر په نامه یاداوه. بهادر خان د خپل وخت پوهه ترلاسه کړې وه او زیات اشعار یې هم ویلې دي. د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک په خپل کتاب کې ثبت کړي دي. دا د بهادر خان د شعر یوه بېلګه:

بدله

ښلتون دې زور دی تر لېمو مې سهار نم څاڅي

لکه شبنم څاڅي

دا سره یاقوت مې په لمن کې ستا په غم څاڅي

په غم الم څاڅي

ګوره لیلا باران د اوښو ستا په چم څاڅي

ځنګه پرچم ځاځي
راغله ليلا په شينکي خال نځا په ګلو کوي
په سرو منګلو کوي
سهار چې و ځي سيل کا رږغ په بلبلو کوي
ګل په اوربلو کوي
ملالې سترګې يې کاته په وير ژړلو کوي
زيب په کجلو کوي
د ژوبل زړه وينې په هر ګړۍ هر دم ځاځي
لکه شبنم ځاځي
ښکلې نجلۍ د باغ په لور مه ځه نځا مه کوه
عاشق رسوا مه کوه
وريت سوی زړه يې دی، مين پورې خندا مه کوه
راشه جفا مه کوه
زه يم پتنګ ته يې ډېوه ما جلبلا مه کوه
نور ظلم بيا مه کوه
يم ستا له عشقه لېونی پر ما ماتم ځاځي
غم او الم ځاځي

**ملا پير محمد مياجي:**

ملا پير محمد مياجي د ملا محمد سرور زوی د هوتکو د دورې له سترو عالمانو او روحانيونو څخه و چې په ټولو مجاهدو او مبارزو کې د ملي مشر ملګری و. ملا پير محمد اصلاً د کابل د شاوخوا اوسېدونکی و. په لومړۍ جرګه کې د ملي قايد ملګری و. وروسته د اصفهان له نيولو شاه محمود اصفهان ته وغوښت او هلته د بادشاه مرشد او سلاکار شو. هلته يې له روافضو سره ډېرې مباحثې وکړې او دوی ته يې قناعت ورکاوه. د روم عالمانو د پير افغان خطاب ورکړی و. د شاه اشرف په زمانه کې هم د شاه اشرف پير او مرشد و.
ملا پير محمد مياجي د خپل پلار شاګرد و، چې د وخت مروجه علوم يې ورڅخه ولوستل. ملا پير محمد مياجي ښه شاعر او مؤلف و. دوه کتابونه يې په پښتو ژبه ليکلي وو، چې يو افضل الطرايق (علم اخلاق) او بل کتاب يې الفرائض فی رد روافض و. ملا پير محمد مياجي زيات شعرونه ويلي دي دا ده د ده د شعر يوه بيلګه؛

شيخ متي چې خليلي و — دی له اره لوی ولي و
يوه ورځ روان په لار و — لوی ښبنتن په استغفار و
کړه د ذکر د غفار — يوه شېبه نه و وزګار

**بابو جان بابي:**

بابو جان بابي د کريم خان بابي زوی د مياجي شاګرد دی. په اټغر کې اوسېدلی، د خپل وخت د نامتو مبارزينو او توريالیو خلکو څخه شمېرل کېږي. بابو جان بابي د شاه حسين پاچا د واکمنۍ د وخت تکړه او غښتلی سړی و. په ۱۱۳۴هـ ق کال د شاه حسين ورور شاه محمود اصفهان ته د جګړې لپاره روان شو نو بابو جان بابي د خپلو درې زرو ملګرو سره يو ځای چې په هغو کې هوتک، توخي، تره کي هم شامل وو له صفويانو سره وجنګېده. بيا د کلات

ښخه د کندهار د ماشوره نومي کلي ته راغی. په هغه ځای کې يې ډېر افغانان سره راټول او د دغې کلاله لوري يې د کندهار ښار ونيوه.
بابو جان بابي د پښتو ژبې تکړه شاعر، ليکوال او ښه ژباړونکی و چې په ۱۱۲۹ ه ل کال يې د (شها او ګلان) کېسه په پښتو مثنوي نظم کړه او د (قصص العاشقين) په نوم يې ونوموله. د دغه کتاب په بېلا بېلو برخو کې داسې شعرونه ويل شوي دي چې د عشق ستاينه په کې شوې ده. دا ده د ده د شعر يوه بېلګه:

عشق يو هسې توريالی دی چې په هر ځای يې بری دی
د عشق اور هسې سوزان دی چې سوځلی يې جهان دی
زړه بې عشقه کله زړه دی چې بې عشقه زړه د مړه دی
نه دی عشق په يوه رنګ کله صلح ګهې جنګ
پښتانه کاندي متل چې دی خوږ تر شات عسل
چې بې عشقه سرکډو دی هم هر زړه سزاوار نه دی
چې د عشق کاندي خبرې کړي په غوږ دا مرغلرې
د پاکانو عشق سزا دی امانت دا د مولا دی

**سيدال خان ناصر:**

سيد ال خان ناصر د ابدال خان زوی، په قوم باړخېل ناصر د پکتيکا ولايت په ډيله نومي ځای کې اوسيدلی دی. سيدال خان ناصر د سلطان ملخي توخي د واکمنۍ په وخت د ابدال خان سره يو ځای اټغر ته راغلل او هلته مېشته شول.
سيد ال خان ناصر د ملي قايد له لومړۍ جرګې څخه نيولې بيا په هر ډګر کې د شاه محمود هوتک، شاه حسين هوتک او شاه اشرف هوتک سپه سالار پاتې شوی دی او ټولو ورته په درنه سترګه کتل.
د سيد ال خان ناصر پلار ابدال خان ناصر خان د سلطان ملخي معاصر او د سلطان ملخي په ټولو جګړو کې يې ګډون درلود. سيد ال خان ناصر سربېره د افغانستان او ايران له فتحې او دفاع له روسي ځواکونو سره د ايران په مازندران کې ډېرې وهلې دي او د دوهم پيټر ځواکونو ته يې ماتې ورکړې ده. په پای کې يې په هغه تړون کې چې دده او د روسانو ترمنځ لاس ليک شو درې ولايتونه لکه ما زندران، استراباد او ګيلان له روسانو څخه بېرته راوګرځول. د هېواد په ساتنه او دفاع کې تر ورروستۍ سلګۍ پورې له دښمنانو سره جنګېده، چې د ده له ماتې سره د هوتکو شاهنشاهي او واکمني هم له منځه ولاړه. سيد ال خان ناصر د قلات په کلا کې له دوو مياشتو لاس په لاس جګړو وروسته د نادر افشار د جګړنو په لاس کښېووت. د دې نامرد دښمن له خوا د سترګو له نعمت څخه محروم شو. دا ستر اتل په کوچي توب کې زوکړی او لوی شوی دی .د ژمي مېنه به يې زاوه وه چې په اوسني وزيرستان کې ده او د دوبي مېنه به يې د اټغر سيمه وه. دغه ستر اتل نه يوازې دا چې يو تکړه سپه سالار و، بلکې د پښتو ژبې تکړه شاعر هم و چې د محمد هوتک د پټې خزانې په کتاب کې يې د شعر بېلګه خوندي ده. دا ده د ده دشعر يوه بېلګه:

بدله

يار ما له هسې ګران شو راتېر تر ټول جهان شو
نور نه وينم په سترګو جهان ټول راته جانان شو
دوې زلفې دې اوږدې کړې پرمخ دې راخپرې کړې

د دغه کورنۍ وتلي ليکوالان دا دي:
الف: هوتکيان:
۱- داوود هوتک

۲– محمد هوتک

۳– شاه حسین هوتک

۴– شیخ ملکیار هوتک

۵– محمد رسول قلاتوال هوتک

٦– ملا پیر محمد هوتک

۷– نازو توخۍ هوتکه

۸– ملا یار محمد هوتک

**نازو توخۍ:**

نازو توخۍ د سلطان ملخي لور په قوم توخۍ په ۱۰٦۱هـــ کال د زابل ولایت د کلات د سیمې په (تازي) نومي ځای کې زیږېدلې ده. څنګه چې د دې پلار ډېر هوښیار او عالم سړی و، نو د غزني ولایت څخه د زابل ولایت کلات، د سیمې تر جلدک پورې د پښتنو قومونو مشر وټاکل شو او په خپلواکه توګه یې واکمني کوله. نازو توخۍ به په کوچنیوالي کې د پښتنو مېرمنو له سپین ږیرو او پوهو عالمانو سره لوست وایه، دې پښتنې مېرمنې دا لوړې ځانګړتیاوې درلودلې:

۱– زاهده، عابده، پرهېزګاره او صالحه ښځه وه.

۲– د نارینه وو په شان د زړورتوب نښې په کې موجودې وې.

۳– ډېره مېړنۍ او سخي ښځه بلل شوې ده.

۴– په مېلمه پالنه کې د ستر نوم څښتنه وه.

۵– په بې وزلو یې پېرزوینه کوله.

٦– د سخاوت نوم یې له خیبر څخه تر کوهستانه رسېدلی و.

کله چې سلطان ملخی توخي د سره غره په شاوخوا کې په جګړه کې مړ شو. حاجي عادل توخي د نازو ورور د خپل پلار د غچ اخیستلو لپاره ملا وتړله. کور کلی یې نازو ته پرېښود. هغه و چې نازو د نرینه و په شان توره تر ملا کور او کلی یې د یرغلګرو له تاړاک څخه وساته .د نازو مېړه ښالم خان هوتک خسر یې کرم خان د هوتکو له ښالم خېلوله قوم څخه وو. نازو څلور زامن درلودل چې نومونه یې دا دي:

۱– حاجي میر خان (میرویس نیکه) ۲– عبدالعزیز خان ۳– یحیی خان ۴– عبدالقادر خان

په دغه څلورو کې یې مشر زوی میر خان و. نازو پرهېزګاره او نېکخویه ښځه وه. خپلو زامنو ته به یې په اوداسه شیدې ورکولې. سربېره پر دې چې نازو توخۍ ستره پښتنه عالمه وه دپښتو ژبې شاعره هم وه. دپټې خزانې له روایته دې یو دېوان درلود چې دوه زره بیتونه یې درلودل او هر ډول رنګینو اشعارو په کې شتون درلود.

رباعي

سحرګه وه د نرګس لېمه لانده      څاڅکي څاڅکي یې له سترګو څڅېده

ما ویل څه دي ښکلیه ګله ولې ژاړې؟      ده ویل ژوند مي دی یوه خوله خندیده

**اخځلیکونه:**


۱ــ هوتک، لیکوال الحاج امان الله، د خپلواکۍ لمر خرک.

۲ــ هوتک، محمد داود، پټه خزانه،دپوهنې وزارت،دویم جلد ، کابل دولتي مطبعه

۳ــ هېوادمل سرمحقق زلمی، د پښتو ادبیاتو تاریخ (لرغوني اومنځنۍ دورې)، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۷۹هـــ ش کال

# پنځه ویشتم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د ماین خطرونه | |
| **د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتې) موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخو ته ورسیږي:<br>− د بېلا بېلو ماینونو د خطرونو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>− د ماینونو د خطرونو په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>− د ماین د تېپي کس سره به د خپل وس او توان په اندازه بشري مرسته وکړای شي.<br>− د هغو سیمو په اړه چې هلته ماینونه شتون لري نورو ته د هغو د خطرونو په اړه خبرداری ورکړای شي.<br>− د متن د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول تر سره کړای شي.<br>− د ماینونو د خطرونو په اړه به یوه مقاله د کیسې په ډول ولیکلای شي. | |
| **د تدریس لارې** | پوښتنه او ځواب، په یوازې توګه کار، د کتاب لوستل. | |
| **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي** | کتاب، تخته، تخته پاک، تباشیر او د امکان په صورت کې د ناچاودو ماینونو پوستېرونه او انځورونه. | |
| **د ارزولو لارې او وسیلې** | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه او د پوښتنو او ځواب ارزونه. | |
| **د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | سلام اچول، د حال او احوال پوښتنه، د تېر لوست څخه یادونه او بیا د نوي لوست پیل د کولو لپاره هڅوونکې پوښتنې. | ۴ دقیقې |
| **انګیزی رامنځته کول** | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي. کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړي!<br>− که تاسې له داسې یوې سیمې سره چې ماین ولري مخامخ شئ نو څه باید وکړئ؟<br>− که په یو ځای کې څوک په ماین ټپي شي نو تاسې باید څه وکړئ؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۴ دقیقې |
|---|---|---|
| − ښوونکی دې د لوست ټاکلې برخه په څو زده کوونکو په وار سره ولولي او په لوستلو کې دې له زده کوونکو سره پوره مرسته وکړي. | − څو زده کوونکي په وار سره نوی لوست د کتاب له مخې په مناسب غږ لولي او لفظي تېر وتنو ته پاملرنه کوي. | |
| − ښوونکی دې نوی لوست زده کوونکو ته ولولي او ستونزمن الفاظ او اصطلاحات دې دتختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | − زده کوونکي د الفاظو او اصطلاحاتو په معنا کولو کې برخه اخلي او د کومو اصطلاحاتو په معنا چې پوه شوي نه وي ځان پرې پوهوي او هغه په خپلو کتابچو کې هم لیکي. | |

| – زده کوونکي په وار سره پوښتنو ته ځوابونه وايي او د نه پوهېدو په صورت کې یې ځواب د ښوونکي له خولې اوري. | – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه په وار د لوست د لومړي فعالیت چې د ماین په اړه ځو پوښتنې دي مطرح کړي او د هغوی ځوابونه دې په ځير واوري او د نه ځواب ورکولو په صورت کې دې ښوونکی د پوښتنې ځواب وړاندې کړي. |
|---|---|
| – زده کوونکي د مسلکي او غیر مسلکي مرستو په هکله څو کرښې لیکي او بیا یې لولي. | – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښونه وکړي چې په یوازې توګه د مسلکي او غیر مسلکي مرستو په هکله نیم مخ لیکنه وکړي او بیا دې په ټولګي کې په وار سره ولولي. نور دې خپلې تېروتنې سمې کړي. |
| – زده کوونکي په خپلو منځوکې د ماین په اړه معلومات تبادله کوي. | – ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې د ماین د ډولونو او د ماین د ساحو په هکله نورو ته معلومات وړاندې کړي. |
| – زده کوونکي د لوست د لنډیز په ویلو کې برخه اخلي. | – ښوونکی دې له زده کوونکو څـــخه وغواړي چې د لوست لنډیز په خپله ژبه نورو ته ووایي. |
| – زده کوونکي کورنۍ دنده په کتابچو کې لیکي او د هغه ځواب په کورونو کې بشپړوي. | – کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکو ته د پښتو لوست په لومړي او دویم درسي ساعتونو کې په خپله خوښه کورنۍ دندې وټاکي او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**سوررنګ:** هغه سیمه چې ناچاودي توکي په کې موجود وي. د ماین پاکانو له خوا هماغه سیمه په سره رنګ سره په نښه کېږي. په دې توګه خلک پوهیږي چې هلته ماینونه ښخ دي. سور رنګ د خطر او د ماینونو د موجودیت نښه ده.

**غبرګون:** عکس العمل.

له نا آشنا شي څخه مطلب ناچاودي توکي یعني ماینونه دي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

د ماینونو او ناچاود توکو د نښو او نښانو پېژندنه:

ماینونه او ناچاوده توکي په هر ځای کې پیدا کېدای شي. زیاتره وخت ډېره ستونزمنه او یا هم ناممکنه ده، چې ماینونه په سترګو ولیدل شي. که چېرې تاسو په یوه داسې سیمه برابرشئ چې ماینونه په کې شتون ولري، نو باید ډېرژر د ماینونو د خطر نښې په پام کې ونیسئ.

درې ډوله نښې نښانې د بېلا بېلو سیمو لپاره شتون لري:

**الف:** رسمي نښې: هغه نښې دي چې د ماین پاکۍ د دفتر له خوا اېښودل شوي دي او درې ډوله رنګونه لري:

+– په سره رنګ رنګ شوې ډبرې، د ماینونو د خطر نښې دي.

+– په ابي رنګ رنګ شوې ډبرې، د ناچاوده توکو د خطر نښې دي.

+– په سپین رنګ رنګ شوې ډبرې چې د پاکې سیمې نښې دي.

یادې شوې نښې کېدای شي، په دېوالونو، د جګړې په لومړۍ کرښه، د سړک تر شاه رنګو ودانیو، او نورو سیمو کې

وكارول شي. په ځينو سيمو کې ځينې سميټې پايې هم ليدل کېږي. چې يوه خوايې سره او بله خوا يې په سپين رنګ، رنګ شوي وي. سره خوا يې د خطر او سپينه خوا يې د پاکې سيمې نښه ده.

**ب:** نارسمي يا سيمه ييزې نښې او نښانې:

هغه نښې دي چې د خلکو له خوا ايښودل شوي وي، لکه:

د ډبرو او خاورو کوټ يا ځلی.

هغه نښه چې د لرګي او يا له تيږې څخه جوړه شوي وي او د خطرناکې سيمې په لور د اشارې په شکل ايښودل شوی وي.

لرګي، د ونې ښاخونه او نور شيان چې سړک يې بند کړی وي.

هغه ډبرې چې د سړک پر غاړه ايښودل شوي دي.

د چليپا نښه چې له لرګيو يا نورو شيانو څخه جوړه شوې وي. او داسې نور......

**ج:** د ماينونو او ناچاودو توکو د شتون اټکلي سيمې:

هغه سيمې چې مخکې د جګړو سيمې وې.

د ښارويو څرمن او يا هډوکي.

نظامي مورچلې او د ښار ځايونه.

وچ بوټي او هغه ځمکې چې بڼې يې بدلون موندلی وي.

د مهماتو صندوقونه، مرمۍ او د پوځي وسايلو ويجاړ شوي پاتې شوني.

د سيمونو ټوټې او اغزن سيمونه.

هغه لارې او سړکونه چې کار ترې نه اخستل کېږي.

**د لوست اصلي پيغام:**

سرې رنګې شوې ډبرې د ماين د خطر، آبي رنګ شوې ډبرې د ناچاودوتوکو د خطر نښې او سپينې رنګ شوې ډبرې د پاکي سيمې نښې دي.

**د ماينونو خطرونه**:– ماينونه هغه چاودېدونکي توکي دي چې د ټولنې د بدمرغۍ او بدبختۍ سبب کېږي او دغه ماينونه په بېلا بېلو شکلونو او رنګونو جوړيږي، لکه: پلاستيک، لرګی او اوسپنه چې بيا يدې ځېزونو کې په ډېر مهارت سره ناچاوده توکي ځای پر ځای کېږي او بيا د بېلا بېلو شيانو په وسيله لاس، پښې يا نورو شيانو د فشار په واسطه چوي او په خپل شاوخوا کې انسانان ژوي او نور شيان له منځه وړی.د ماينونو جوړولو تاريخ تر روميانو پورې رسيږي. روميانو به د دښمن پر وړاندې په لارو کې کندې ايستلې. په هغو کې به يې تېره ميخونه په تيرو ايښودل، له پاسه به يې پرې خاورې اچولې. بيا وروسته همدغه روميانو داسې مېخونه ايښودل چې ځلور تېرې څوکې به يې درلودلې. په دريمه زيږديزه پېړۍ کې په چين کې ژوک ليانګ داسې نوی ماين منځ ته راوړ چې چاودنه يې کوله. په ۱۲۷۷زيږديز کال کې چينايانو د هغو پر وړاندې له چاودېدونکو ماينونو څخه ګټه واخيسته او په ۱۵۷۳ زيږديزکال د سويلي المان د اګزيرک په ښار کې د سومائيلي په نامه يو پوځي انجنير دفلادر ماشين منځ ته راوړ چې په چاودنه کې يې ډېر قوت درلود او تر ۱۹ پېړۍ پورې يې ترې ګټه اخيستله.

په ټوليز ډول ماينونه په دوو برخو وېشل شوي. د ټانګ ضد ماين او د پرسونل ضد ماين. د پرسونل ضد ماين: د لومړي ځل لپاره په ۱۸٦۲ زېږدېز کال کې جوړشو چې برقي فيوز يې درلود. المانيانو په نړيواله لومړۍ جګړه کې ترې ګټه

واخیسته او المانیانو له خوا جوړ شو.

په ۱۹۹۹زیږدیز کال کې د کاناډا د اتاوا په ښار کې یو تړون لاسلیک شو چې له دې وروسته به څوک ماین نه جوړوي او نه به یې کاروي. دا تړون نیمګړی و، ځکه نورو ماینونو ته پکې اشاره نه وه شوې. چې بیا د نړیوالو سازمانونو په هلو ځلو د icbl په نامه یعنې د ځمکې د ماینونو ضد د مقابلې اداره جوړه شوه، چې په هلو ځلو یې نژدې ۱۲۰۰ غیر دولتي سازمانونو د نړۍ په ۶۰ هېوادونو کې د ماینونو په ایستلو او شنډولو کار شروع کړی دی، خو سره له دې زموږ په هېواد کې له ۱۳۵۷هـــ ل کال راهیسې چې جګړه روانه ده. د جګړو بېلابېلو خواوو د ټانګ ضد او پرسونل ضد ماینونه ایښي دي.

غیر دولتي سازمانونه چې ملګري ملتونه ورسره مرسته کوي، زموږ په ګران هېواد افغانستان کې د ماینونو په شنډولو بوخت دي. تراوسه پورې په هېواد کې ۷۰۲ ډوله ماینونه پېژندل شوي دي. له ۱۹۸٦ زیږدیز کال راهیسې څه له پاسه ۱۱۳ میلیونه مربع متره ځمکه له ماینونو او نورو چاودېدونکو توکو څخه پاکه شوې ده او تر ۱۱ میلیونو زیات ماینونه شنډ شوي دي.

افغانستان د نړۍ له هغو هېوادونو څخه دی، چې زیات چاودېدونکي توکي او نا چاودلي مهمات پکې شته. په هېواد کې د جنګ او جګړو په بهیر کې د جګړو د دواړو خواوو له خوا ماینونه ایښودل شوي دي، چې اوس مهال هم شتون لري او په هره میاشت کې زیات کسان پکې وژل کېږي.

# شپږویشتم لوست

## د تدریس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | اصطلاحات او محاورې | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د اصطلاحاتو او محاورو په معنا او مفهوم به وپوهیږي او هم به يې تعریف وکړای شي.<br>– په پښتو لیکنو کې به اصطلاحات وپېژني.<br>– د اصطلاحاتو او محاورو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>– د اصطلاحاتو او متلونو په توپیر به پوه شي.<br>– څو پښتو اصطلاحات به ولیکلای او وکارولای شي.<br>– د پښتو اصطلاحاتو د استعمال په مفهوم به وپوهیږي او په خپلوخبرو اترو کې به يې و کاروي.<br>– د متن د پای فعالیتونه به په خپلواک ډول ځواب کړای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنه او ځواب، په یوازې توگه کار او ډله ییز کار. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د اصطلاحاتو او محاورو پښتو اخځلیکونه، کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر او مارکر. | |
| د ارزولو لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او بیا په نوي لوست پیل کول. | ۴ دقیقې |
| د انگېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي. او کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړي!<br>– ویلای شئ چې محاوره څه ته وایي؟<br>– څه فکر کوئ چې محاوره به له متل سره څه توپیر لري؟ | ۶ دقیقې |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | **د زده کوونکو فعالیتونه** | **۳۵ دقیقې** |
| – ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د اصطلاحاتو په اړه څو پوښتنې وکړي.<br><br>– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې لوست په مناسب غږ په خپله ژبه ووایي.<br>– ښوونکی دې د اصطلاحاتو او محاورو په اړه لنډې | – زده کوونکي ښايي څو پښتو اصطلاحات ووايي او د نه پوهیدو په صورت کې د ښوونکي څخه مرسته وغواړي.<br>– څو زده کوونکي متن په خپله ژبه لولي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي او د | |

| | |
|---|---|
| ځرګندونې وکړي. | اصطلاحاتو او محاورو په معنا او مفهوم ځانونه پوهوي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې څو پښتو اصطلاحات چې د دوی زده وي ووايي او بل تن زده کوونکي دې پر تختې وليکي. | – څو زده کوونکي پښتواصطلاحات چې يې زده دي وايي او بل زده کوونکی هغه د تختې پرمخ ليکي. |
| – ښوونکی دې په څو زده کوونکو په متن کې راړول شوې محاورې پر تختې وليکي او بيا دې په وار سره د هغو دويلو د اړتيا په هکله خبرې وکړي.. | – نور زده کوونکي تختې ته ځير کېږي او هم د محاورو په معنا کې برخه اخلي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په يوازې توګه يوه يوه محاوره په کتابچو کې وليکي. د محاورې مقصد دې په ګوته کړي او ټولګيوالو ته دې په وار سره واوروي. | – زده کوونکي په يوازې توګه يوه يوه محاوره په کتابچو کې ليکي او بيا يې مقصد په خپله ژبه بيانوي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د لوست څلورم فعاليت چې پوښتنې دي په خپلو کتابچو کې دې د هغو ځوابونه وليکي. ښوونکی دې د ستونزې په صورت کې ورسره مرسته وکړي. | – زده کوونکي د لارښوونې سره سم د څلورم فعاليت د پوښتنو ځوابو نه په کتابچو کې ليکي او بيا يې په ټولګي کې لولي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې يوه اصطلاح له ځانه ووايي او بيادې مقصد او د هغه د کارولو ځای ځرګند کړي. | – زده کوونکي يوه يوه اصطلاح له ځانه وايي او بيا د هغو د کارولو ځای ځرګندوي. |
| – کورنۍ دنده: ښوونکی زده کوونکو ته په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه کورنۍ دنده سپاري او په دريمه ورځ دلوست د پای کورنۍ دنده ورکوي. | – زده کوونکي د کورنۍ دندې ټاکلې موضوع په خپلو کتابچو کې ليکي او په کورونوکې يې بشپړ وي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

محاوره څه ته وايي؟

محاوره د متل په څېر د شفاهي ادبياتو يوه مهمه برخه ده، چې د خبرو اترو په وخت کې يې ويونکي د خپل مقصد لپاره کاروي.

محاوره په لغت کې خبرو اترو ته هم وايي.

د متل او محاورې توپير:

په متل کې د کلمو د يوې مجموعې مفهوم روښان وي او نورو کلمو ته اړتيا نه لري. متل په خپله جمله او عبارت کې روښانه مفهوم لري.

خو په محاوره کې مفهوم روښانه نه وي او د مفهوم د روښانه کولو لپاره نورو کلمو ته اړتيا لري، لکه:

په خوله کې لوېدل: يعنی د بل چا خبرې پرې کول.

په غوږ وهل: يعنی د بل تر غوږه يې تېرول.

اوبه خړول: يعنې پلمه پيدا کول.

سترګې درنول: يعنی له چا څخه په تنګېدل.
سترګې سپينول: يعنی بې حيايي کول
غاړه ايښودل: يعنی قانع کېدل.
لاس تنګېدل: يعنې د اقتصادي ستونزو سره مخامخ کېدل.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

## اصطلاحات او محاورې

اصطلاحات د اصطلاح جمع ده چې محاوره هم ورته وايي.
اصطلاح داسې ژبنی ترکيب دی، چې په هغه کې ټولې کلمې په خپلو اصلي معناوو نه کارول کېږي او د ټولو کلمو د معناوو له ترکيب څخه داسې يو واحد مفهوم لاس ته راځي چې په بېل بېل ډول د هرې کلمې د اصلي معنا سره نېغ په نېغه اړيکې نه لري.
اصطلا حات او محاورې د پښتو ژبې، ادب او زموږ د ورځني ژوند د خبرو اترو يوه پياوړې برخه ده، چې د ژبې خوند او لطافت زياتوي. همدارنګه محاوره چې ځيني خلک ورته مرکه، خبرې اترې هم وايي د کلمو او الفاظو داسې يوه ټولګه ده چې په خبرو اترو کې د حقيقي معنا پر ځای په مجازي معنا کې کارول کېږي. اصطلاحات او محاورې د پښتو ژبې بډايه پانګه ده. زموږ خلک يې د ورځيني ژوند په بېلا بېلو برخو کې کاروي. اصطلاحات او محاورې په هره ژبه کې شتون لري او د هغې ژبې ويونکي يې په خپلو خبرو اترو کې کاروي.
دا دی اوس د بېلګې په توګه د پښتو ژبې اصطلاحات او محاورې دلته راوړو:
- اوبه په ډانګ بېلول. د بيلتون لپاره له هرې وسيلې او تېري څخه کار اخيستل.
- لور په لوټه تېره کول. کارنه کول او خلک غولول.
- د بوسو لاندې اوبه تېرول. ټګي او فريب کول.
- په پچه سپرېدل، کشمير ليدل. له ځانه لوړې خبرې او لوبې کول.
- لاس تر زنې لاندې کېناستل. بې وسه کېدل.
- اوبه خړول. جګړې ته بهانه جوړول.
- زړه خوړل. غم کول
۴- من من غټېدل: خوشحاله کېدل
٦- بلا له سره اړول: له يوه مصيبت څخه ځان خلاصول
۸- نيم نه پاتې کېدل: ډېر خپه ،خوارېدل
۹- زړه خوړل: پرېشانه او په سوچ کې وخت تېرول
۱۰- د شين آسمان شرق: د توقع خلاف ناڅاپه څه پېښېدل – په چا لګېدل
۱۲- د خوشحالۍ نه په جامو کې نه ځايېدل: ډېر خوشحالېدل
۱۳- لاسونه يو کول: په اتفاق کېدل، يو کېدل
اوس غواړو چې د ښاغلي ښوونکي د لا پوهاوي لپاره د ځينو پښتو اصطلاحاتو د کارونې په اړه لنډ معلومات وړاندې کړو.
- اخ و ډب: د دغه اصطلاح د کارونې ځای معلوم او ښکاره دی. د ساري په توګه په انقلاب کې داسې اخ وډب وو چې ډېری وګړي بې کوره شول.

**اسمان ته کتل:** د دې خبرې څخه موخه کبر کول دي. ځان ډېر لوی ګڼل د ساري په توګه: توریالی آسمان ته ګوري او خپل ځان ډېر لوی ګڼي.

**انا کېدل**: کومه وړه نجلۍ چې ډېره هوښیاره وي او ځان هوښیاره وګڼي. نو ورته وايي چې ملالۍ اوس بیخي انا شوې ده. یعني په هوښیارۍ کې د انا په څېر شوې ده. د تجربې او پاخه عقل څښتنه ده.چې طنزیه معنالري.

**اوبه خړول**: د دې خبرې څخه مطلب د یوه کار لپاره پلمه جوړول، لانجې او جنجال ته لاره اوارول. نو داسې کسانو ته بیا وايي هسې اوبه خړوې.

**اوړه ورکول:** د دې خبرې څخه مقصد له چا سره په کوم کار کې مرسته کول دي. د ساري په توګه: مومند په ډېرو چارو کې له خپل پلار سره مرسته کوي او هغه ته اوړه ورکوي. لږ څه اوړه يې پرې سپکه ده. یعنی معنا دا چې د مومند له مرستې څخه یې کار تر سره شو.

**بازار تودېدل:** د دې خبرې څخه مطلب په بازار او پلورنځیو کې د یوه جنس د پلورلو اخیستونکي زیات شي. د ساري په توګه: د کابل په منډوي کې د غوړو بازار تود دی.

**بازار شړېدل**: د دې خبرې څخه مطلب دادی چې په بازار کې د یوه جنس د کمېدلو او نه پلورلو له کبله بازار سوړ شي یعنی اخیستونکي یې لږ وي.

**زړه باغ باغ کېدل**: د دې خبرې څخه مطلب ډېر خوشحاله کېدل دي. د ګل په شان غوړېدل. په چا باندې دیوه شي زیری کول چې هغه یې له اورېدو څخه ډېر خوشحاله شي.د ساري په توګه: په توریالي مې د ورور د راتلو زیری وکړ. زړه یې باغ باغ شو او د ګل په شان وغوړېده.

**پګړۍ له سره لوېدل:** کنایه ده. د یوه چا له سپکاوي او بې عزتۍ څخه، د دې خبرې برعکس داسې ده. پګړۍ دې له سره مه لوېږه. دا خبر د بریالیتوب د لاسته راوړني لپاره ویل کېږي. لکه: میندې چې د خپلو زامنو د بریالیتوب لپاره دا دعا کوي. الله جل جلاله دې پګړۍ مه سپکوه!

**بڼه الوتل:** د یوې پېښې له مخامخ کېدو او وېرې څخه د سرې رنګ والوزي. یا نا ببره پر چا باندې په زوره غږ وشي د هغه بڼه والوزي لکه: د یوې پېښې سره مخامخ کېدل.

**بې ځایه ګڼېدل**: د دې خبرې څخه مطلب دا دی، چې یو څوک د چا په کار کې بې ځایه لاسوهنه وکړي. یعنې په غونډه کې باید د هر چا په خبروکې بې ځایه خبرې ونه کړي چې د نورو پر وړاندې سپک ښکاره نه شي.

**بې خولې کېدل**: د دې خبرې څخه مطلب هغه کسان دي، چې سمې او پر ځای خبرې ونه کړای شي. او یا د چا د خبرو پر وړاندې لازم ځواب نه شي ورکولی.

**بې لاس او بې پښو کېدل**: د دې خبرې مطلب دا دی، چې یو څوک ډېر خوار او بې وزلی شي. یعنې په ژوند کې نور هېڅ امکانات ونه لري نو دا اصطلاح ورته استعمالیږي او وایي چې فلانی اوس داسې بې لاسو او بې پښو شوی، چې هېڅ کار نه شي کولای. یاد یو چاپه وړاندې غلی پاتی کېدل چې هېڅ ونه شي ویلای، نو وایی چې بې لاسو او بې پښوشو.

**په سر خاورې بادول**: د دې خبرې څخه مطلب دا دی، چې یو او یا کومه کورنۍ له غم او اندېښنې سره مخامخ شي نو ویر کوي. ژاړي، ځان وهي په سر خاورې بادوي. نو خلک وایي چې هغه فلانی سړی له غمه په سر خاورې بادوي.

**پښه نیول:** د دې خبرې څخه مطلب دا دی چې د چا کوم خپل او یا ملګری له سرې سره ناسته ولاړه ونه کړي. یعنی راشه درشه ونه کړي، نو دا اصطلاح ورته کارول کېږي. مثال: پخوا اجمل زموږ سره راشه درشه کوله، خو اوس یې پښنه نیولې ده.

**دېوال ته سر ټمبه کول**: د دې خبرې څخه مطلب دا دی، چې یو څوک له خپلې خبرې څخه تېر نه شي یا د نورو خلکو

دلايل وا نه وري او ويې نه مني، په خپلې نا معقولې خبرې باندې ټينګ ولاړ وي. داسې كسان فكر كوي چې همدا زما خبره سمه ده او د نورو خلكو خبرې سمې نه دي. له خپلې خبرې څخه وانه وړي نو خلک ورته وايي، چې فلانی ډېر سر تنبه سړی دی. د چا دليل ته غوږ نه ږدي او له خپلې خبرې څخه نه تېرېږي.

**راشه درشه كول:** د دې خبرې اصلي مطلب دا دی، چې خپل او خپلوان له يو بل سره ناسته او ولاړه او ښې اړيكې ولري، نو بيا وايي چې د فلاني سره ښه راشه درشه لري.

**زړه تشول:** دا وينا په ډېرو ځايونو كې كارول كېږي. لكه د ښځو له خوا په مړي باندې د غمجنو ساندو ويل او د مړي د ژوند، ځوانۍ او نورو تېرو كړنو را يادول. د خپلو زړونو د دردونو او غمونو تشول. همدا راز د غوسې په وخت كې يو څوک خپل مقابل لوری چې په كومې موضوع كې ملامت ووينې، نو هغه خبرې چې بل وخت ورته نه شي كولای، كوي يې، نو په دې صورت كې ويل كېږي، چې زړه يې تش كړ.

**لاس مښل**: د دې خبرې معنا ارمان كول او پېښيماني ده، چې هغه يې له لاسه وتلی او وخت يې تېر شوی وي. د ساري په توګه: له چا څخه د ازموينې وخت تېر شي، نو بيا هغه له ځان سره د تېرې شوې ازموينې ارمان كوي. وايي چې كاشكې مې په ازموينه كې ګډون كړی وای. ورسته بيا د هغه ارمان كوي او هغه چانس ورته بيا نه برابرېږي. د بېلګې په توګه: احمد اوس خپل لاسونه مښي چې كاشكې مې هغه فورمه ډكه كړې وای چې له هېواد څخه بهر د لوړو زده كړو لپاره وه.

**اخځليكونه:**

۱ــ نوري، محمد ګل، اصطلاح او محاورې،پښتوټولنه ، ۱۳۲۰هــ ل كال

۲ــ داؤد داورخان، پښتو ادب متل، يونيورستي بک ايجنسي، پېښور ، ۱۹۹۰ز كال

# اوويشتم لوست

## د تدريس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | (په نشه يي توکو) د روږدېدلو لاملونه | |
| د زده کړې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>– د روږدېدلو د لاملونو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د روږديتوب د لاملونو د زيانونو په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– د متن پوښتنو ته به په شفاهي توگه ځوابونه وويلای شي.<br>– د روږديتوب د زيانونو او همدارنگه د ښو او بدو ملگرو په هکله به څو کرښې مقاله وليکلای شي.<br>– هغه اسباب او علتونه چې د يو چا د روږدېدو سبب کېږي د هغو عواملو نومونه به واخيستلای شي.<br>– د متن د پای فعاليتونه به په خپلواک ډول تر سره کړای شي.<br>– د نشه يي توکو د زيانونو په اړه به يې په ذهن کې د کرکې او نفرت روحيه پياوړې شي. | |
| د تدريس لارې | پوښتنه او ځواب، په يوازې توگه کار، په شفاهي او تحريري توگه معلومات وړاندې کول، لوستل، ليکل، خبرې. | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | د روږديدا لاملونو په اړه بېلا بېل پوسترونه، انځورونه، کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک، قلم او تباشير. | |
| د ارزولو لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام اچول، حاضري اخيستل، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر لوست څخه پوښتنې او بيا په نوي لوست پيل کول. | ۴ دقيقې |
| د انگيزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی دې! نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل کړي. او کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو سره شريکې کړي!<br>۱– روږديتوب څه ته وايي؟<br>۲– د روږديتوب لاملونه کوم دي؟<br>۳–که چېرې يو ځوک په نشه يي توکو اخته وي څه وکړي چې له دغې بدمرغۍ څخه ځان وژغوري؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې د نوي لوست په اړه له زده کوونکو څخه څو انگيزوي پوښتنې وکړي. | – زده کوونکي د نوي لوست په اړه انگيزوي پوښتنو ته مناسب ځوابونه وايي. | |
| – ښوونکی دې متن و لولي او په معنا او مفهوم دې خبرې و کړي. | –زده کوونکي متن ته په ځير سره گوري او غوږ ورته نيسي. | |
| – ښوونکی دې د متن په لوستلو کې له زده کوونکو | – زده کوونکي به د متن په لوستلو کې خپلو تېروتنو ته متوجه | |

| | |
|---|---|
| سره چې په وار سره يې لولي مرسته وکړي . | شي او د ستونزمنو الفاظو سم تلفظ به زده کړي. |
| – ښوونکی دې د روږدیتوب د لاملونو او د هغو د زیانونو په هکله لازم معلومات وړاندې کړي. | – زده کوونکي د ښوونکي معلوماتو ته پاملرنه کوي او د روږدیتوب لاملونو او د هغه د زیانونو په هکله بشپړ معلومات ترلاسه کوي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د روږدېدا لاملونو په اړه پوښتنې وکړي او د زده کوونکو ځوابونوته دې په دقت غوږ ونیسي او د نه ځواب ویلو په صورت کې دې خپله ښوونکی د پوښتنې ځواب ووايي. | – زده کوونکي پوښتنو ته مناسب او اړین ځوابونه وايي او خپله وړتیا ښيي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د روږدیتوب لاملونه په کتابچو کې ولیکي او هر یو زده کوونکی دې خپلې لیکنې په وار سره ولولي. | – زده کوونکي په یوازې توگه د روږدیتوب د لاملونو نور عوامل په کتابچو کې لیکي او په وار سره یې دټولگي په وړاندې لولي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې یوه ډله به په ځانگړي توگه د لوست لنډیز او مفهوم په څو کرښو کې لیکي او بله ډله زده کوونکي به دښو او بدو ملگرو د ځانگړتیاوو په هکله څو کرښې په کتابچو کې ولیکي. | – یوه ډله زده کوونکي به په ځانگړي توگه د لوست لنډیز او مفهوم په څو کرښو کې لیکي بله ډله به په خپله خوښه څو کرښې مقاله د ښو او بدو ملگرو دځانگړتیاوو په هکله لیکي او په ټولگي کې به یې اوروي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې په خپله خوښه د ټولگي پروړاندې د نشه يي توکو د زیانونو په هکله خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي. | – نور زده کوونکي د خپلو ټولگیوالو خبرو ته په غور سره غوږ نیسي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د لوست په اړه څو پوښتنې وکړي او د لوست له زده کړې څخه دې ډاډ تر لاسه کړي. | – زده کوونکي به د لوست د لنډیز په هکله پوښتنو ته مناسب ځوابونه ووايي. |
| – کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې ځوانان څه مسوولیتونه لري؟ ځوان باید څنگه وي او د ټولنې د خدمت لپاره څه ډول وروزل شي؟ یوه لنډه مقاله ولیکي. | – زده کوونکي سپارل شوې کورنۍ دنده په کور کې په بشپړه توگه لیکي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

روږدی: (**معتاد**) اموخته.

خوشحال بابا د روږدي کلمه په لاندې بیت کې داسې کارولې ده:

په سپین مخ یې تازه خط نوی ټوکېږي

زه به زړه ورځنې ژغورم روږدی زاغ دی

روږدیتوب: روږدوالی، عادت.

روږدوالی: روږدېدنه، اخته کېدل بلدتیا.

روږدول: روږدي کول، عادت ورکول، بلدول، آشنا کول.

روږدېده: عادت کېده، اموخته کېده

**اضافي معلومات**

**د روږدیوالي لاملونه:**

د نشه يي توکو د ناوړه استعمال په اړه ډېر وخت دري کلمې استعمالیږي. دا درې کلمې په لاندې ډول دي. عادت، اتکا، او روږدېدل دي.

۱ـ عادت: هغه عمل ته ویل کېږي چې نشه يي توکي ډېر وخت استعمال شي او د یوه انسان عادي عمل یا عادت وګرځي.

۲ـ په نشه يي توکو اتکا: یو ډول اجبار ښیي چې نشه يي سړی د یوه بد حالت له احساس څخه د تېښتې په اړه او یا د دې لپاره چې ځان ښه احساس کړي د نشه يي توکو د اوږد مهاله وخت استعمال ته اړ کېږي. که نشه يي توکي د ځاني نارامیو او یا دردونو د لرې کولو لپاره چې د نشه يي توکو د استعمال د بندېدو په صورت کې رامنځ ته کېږي استعمال شي دې حالت ته بدني(ځاني) اتکا ویل کېږي. که د نشه يي توکو څخه د خوند اخیستلو، د خپګان د کمولو او یا له ورځنیو ستونزو څخه د تېښتې په اړه استعمال شي، د رواني اتکا په نامه یادیږي.

۳ـ په نشه يي توکو اخته کېدل: هغه حالت ته ویل کېږي چې یو څوک د نشه يي توکو استعمال په زیاته اندازه متکي شي؛ ان دومره چې دی په خپله د دې پرېښودلو هیله هم ولري خونه يې شی پیرښودلای. پدې پړاو کې د نشه يي توکو استعمال په خپله روږدی کس او د ده کورنی او ټولنې ته د ډېرو سختو روغتیا يي، اقتصادي او ټولنیزو ستونزو سبب کېږي.

روږدیوالی هغه پړله پسې مسمومیت دی چې د ځینو نشه يي توکو کیمیاوي او یا مصنوعي ترکیباتو د تدریجي مصرفولو له وجې څخه په مصرف کوونکي کس کې پیدا کېږي. د ځاني او روحي او یا دواړو زیانونو سبب ګرځي، چې په پایله کې بې شمېره ځانګړې او ټولنیزې ستونزې رامنځ ته کوي.

په بله وینا د یوه کس عادت کېدل او یا په لوړه کچه ځاني او روحي تړاوله نشه يي توکو سره ،کوم چې پرېښودل يې ستونزمن او یا خو بیخي ناشونی کار وي، روږدیوالی بلل کېږي.

په نشه يي توکو روږدېدل هغه وخت منځ ته راځي کله چې روږدی شخص په پر له پسې توګه نشه يي توکي لکه اپین، پوډر او یا مورفین استعمال کړي او د وخت په تېرېدو يې مینه او میلان نشه يي توکو سره زیات شي او په پړله پسې توګه د نشه يي توکو د لګښت په اندازه کې زیاتوالی راولي. کله چې د نشه يي توکو لګښت کوونکي داسې یو حالت ته ورسیږي چې په زوره د نشه يي توکو مصرف ته اړ وي نو هغه ته روږدې ویل کېږي. که څه هم په نشه يي توکو ککړ کسان هېڅ کله هم دا نه مني چې هغوی دې ګواکې معتاد وي مګر دا ربښتیا ده چې هغوي روږدي دي. یو مشهور متل دی وایي چې:،، هېڅ روږدی کس لومړۍ ورځ په یاد نه لري.

دا یو ښکاره حقیقت دی چې هیڅوک نه غواړي چې د روږدېدو په لمبو کې دې راګیر شي. او هېڅکله دا اراده هم نه لري چې په نشه يي توکو دې ککړ شي او خلک يې د پوډري په نامه یاد کړي. هغه کسان چې وروسته بیا روږدي شوي دي. په لومړیو کې يې یوازې د یو ازمایښت په توګه نشه يي توکي استعمال کړي دي او یا خو يې د ناوړه ملګرو غوښتنې ته چې ده ته يې بلنه ورکړې ده. مثبت ځواب ورکړی او د دغې کوچنۍ تېروتنې په پایله کې د نشه يي توکو په لمبو کې راګیر شوی دی، چې د ځان ژغورل ورڅخه ستونزمن او یا خو ناشونی دی، چې په حقیقت کې همدغه حالت ته روږدیوالی ویل کېږي.

روږدیوالی هغه یوه لویه ټولنیزه، روغتیایي او اقتصادي ستونزه ده، چې بشري ټولنه له یوه لوی خطر او ګواښ سره مخامخ کوي او د ټولنې د وروستوالي، اخلاقي کمزورتیا او د ټولنیزو درغلیو سبب ګرځي.

**اخځلیکونه:**

ښاغلی ښوونکی کولای شي چې د دې لوست د لا زیاتو معلوماتو لپاره له لاندې اخځلیکونو څخه ګټه واخلي:


۱ـ پښتو تشریحي قاموس، څلورم ټوک.

۲ـ افغان نشراتي اداره (انا) لیکوال: جان الن د نشته يي توکو لپاره د تقاضا د کمولو پروژه، ژباړونکی: احمد تکل، چاپ ځای، پیلک ارټ پرېس.

## اته ويشتم لوست

## د تدريس وخت: د اونۍ پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د پښتو لهجې | |
| د زده کړې (پوهنيزې مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>– د پښتو ژبې لهجې به وپيژني.<br>– د پښتو ژبې د لهجو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د پښتو ژبې د لهجو په اړه به خبرې وکړي او په توپيرونو به يې وپوهيږي.<br>– د لوست د پای فعاليتونه به په ډله ييزه توگه ترسره کړي.<br>– د پښتو ژبې د لهجو په اړه به د تر لاسه شوو معلوماتو په ليکلو کې معياري لهجه په پام کې ونيسي. | |
| د تدريس لارې | پوښتنه او ځواب، په يوازې توگه لوستل، ډله ييز کار، لوستل، ليکل، خبرې کول. | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | د بېلا بېلو لهجو د ځينو کلمو ليکلي کارتونه او بېلگې، کتاب، قلم، تخته، تخته پاک او تباشير. | |
| د ارزولو لارې او وسيلې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه او د پوښتنې او ځواب ارزونه. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام او ستړي مه شي، د حال او احوال پوښتنه، له تېر لوست څخه څو پوښتنې او بيا په نوي لوست پيل کول. | ۴ دقيقې |
| د انگېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل کړي. او کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې چې د نوي لوست سره تړاو ولري له زده کوونکو څخه وکړي!<br>– ستاسو په اند لهجه څه ته وايي؟<br>– پښتو ژبې کومې لهجې لري؟<br>– تاسې په کومې لهجې خبرې کولای شئ؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې له تېر لوست څخه يادونه وکړي او کورنۍ دنده دې وگوري.<br>– ښوونکی دې د لوست يعنې د پښتو لهجو په اړه زده کوونکو ته معلومات وړاندې کړي.<br>– ښوونکی دې د پښتو د بېلا بېلو تيرونو د لهجو بېلگې پرتخته وليکي او بيادې د لهجو په توپير باندې رڼا واچوي.<br>– ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د لوست لومړی فعاليت چې لاندې پوښتنې دې وپوښتي او د زده کوونکو ځوابونو ته دې پام وکړي او د نه پوهېدو په صورت کې | – زده کوونکي د تېر لوست په اړه معلومات ورکوي او هم خپله کورنۍ دنده اصلاح کوي.<br>– زده کوونکي د ښاغلي ښوونکي معلوماتو ته غوږ نيسي.<br><br>– زده کوونکي تختې ته پاملرنه کوي او دښوونکي څرگندونو ته په ځير سره غوږ نيسي.<br>– زده کوونکي د لومړي فعاليت چې د لهجو په اړه پوښتنې دي اړوند ځوابونه وايي او د نه پوهېدو په صورت کې يې ځواب له ښوونکي څخه اوري. | |

| | |
|---|---|
| دې د پوښتنې ځواب په خپله ووايي.<br>● لهجه څه ته وايي؟<br>● په پښتو کې کومې اصلي لهجې پېژنئ؟<br>● په يوې ژبې کې لهجې د کومو عواملو له مخې رامنځ ته کېږي؟ | |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپله خوښه په وار سره د پښتو ژبې په يوې لهجې خبرې وکړي؟ | – څو زده کوونکي په وارسره د پښتو ژبې يوې لهجې په اړه خپل معلومات نورو ته وړاندې کوي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې هر يو په خپله خوښه د خپلې سيمې د لهجې په اړه څو کرښې معلومات وليکي. | – هر زده کوونکي په خپله خوښه د خپلې سيمې د لهجې په اړه معلومات ليکي اوپه ټولگي کې يې اوروي . |
| – ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو ووېشي، بيا دې له هرې ډلې څخه وغواړي چې د لاندې تېرونو په لهجو کې نورې بېلگې پيدا او ويې ليکي.<br>● په وزيرۍ لهجه کې (الف) په (و) بدليږي، بېلگې ووايي؟<br>● د احمدزيو په لهجه کې (ژ) په (ز) او (ش) په (س) بدليږي، بېلگې ووایاست؟<br>● د ځدرانو او ځاځيو په لهجه کې (ځ) په (څ) بدليږي، بېلگې ووايي؟<br>● د باجوړ په لهجه کې (غ) په (گ) او (ت) په (څ) بدليږي، بېلگې يې کومې دي؟<br>● د اپريدو په لهجه کې (الف) او (ی) په (و) بدليږي، بېلگې يې کومې دي؟ | – زده کوونکي د ښلا ښلو لهجو په اړه معلومات او بېلگې وړاندې کوي. |
| – ښوونکی دې د لوست لنډيز ووايي او د لوستل شوي لوست په اړه دې يوه لنډه ارزونه ترسره کړي.<br>– کورنۍ دنده: ښوونکی دې د لوست په لومړي او دويم درسي ساعتونو کې زده کوونکوته په خپله خوښه او په دريمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده ور وسپاري. | ـ زده کوونکي د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او د لوستل شوي لوست د ارزونې پوښتنوته په ځواب ويلو کې برخه اخلي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي د سپارښتنې سره سم کورنۍ دنده په کتابچو کې ليکي او ځواب يې په کورونو کې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

لهجه څه ته وايي؟ د ښلا ښلو پښتنو ټبرونو ژبه يا دا چې د يوې ژبې له ځانگړي تلفظ څخه عبارت ده. يا دا چې کوم گروپي توپير چې په ويلو او غږيز سيستم کې ليدل کېږي، لهجه بلل کېږي.

– پښتو لهجې په لومړي سرکې په دوو سترو اصلي او فرعي ډلو وېشل کېږي.

– ژبه څه ته وايي؟ هغه غږونه چې انسانان يې د خپلو افکارو، خيالاتو، غوښتنو او څرگندولو په غرض د يوه ځانگړي سيستم لاندې د غږيزو غړو په واسطه له خولې څخه راباسي ژبه بلل کېږي. يا دا چې ژبه د پوهولو او راپوهولو يوه مهمه وسيله ده.

**اضا في معلومات:**

ښاغلي مجاور احمد زيار د وږمې مجلې د ۱۳۵۴هـ ل کال په (۴) گڼه کې د پښتو لهجو په اړه يو اوږد مضمون ليکلی دی. زيار صاحب د پښتو ژبې لهجې په دريو ډلو ويشي: کندهارۍ، منځنۍ او ننگرهارۍ

ښاغلي زيار وايي چې دغه وېش ډاکټر ميکنزي او ډاکټر کيفر هم منلی دی. ښاغلي زيار د وزيرو د لهجې په نامه يو بل

گروپ هم مني او بنستيزې لهجې څلور بولي. دی د اپريدو لهجه د وزيرو د لهجې تابع گڼي. خو خبره دا ده چې د (ښ)
په غږ کې اپريد ي د وزيرو په لار نه درومي، بلکې د منځنۍ لهجې تابع گڼل کېږي.
ډاکټر شارل کيفر فرانسوي په افغانستان کې د پښتو لهجې په درې ډلو وېشي:
۱–مرکزي لهجه: چې د (ښ، ږ) غږونه په کې په اصلي توگه ويل کېږي. دا لهجه د غزني، کټواز، وردگو او پکتيا په سيمو کې ويل کېږي.
۲– کندهارۍ لهجه: چې د (ښ، ږ) غږونه په کې د (ش، ژ) سره نژدې ويل کېږي.
۳– ننگرهارۍ لهجه: چې د (ښ، ږ) غږونه په کې د (خ،گ) سره نژدې ويل کېږي. پروفيسر اسلانوف او مارگن سټېرن، برتلس، ليبيديف او نور لويديځ ختيځ پوهان پښتو په لويديځو او ختيځو لهجو ويشي. د دې لهجو بنستيز توپير د (ښ، ږ) د غږونو له مخه دی، چې په لومړۍ لهجه کې د (ش، ژ) سره نژدې او په بله لهجه کې د (خ، گ) په شان ويل کېږي، خو دا وېش ډېر پخوانی دی او اوس ورسره دريمه لهجه هم منل شوې ده چې د مرکزي او منځنۍ لهجې په نامه يادېږي او د (ښ، ږ) غږونه په کې په اصلي توگه ويل کېږي.
زموږ په خيال هم د پښتو اساسي او اصلي لهجې هم دغه درې دي، خو په نومونو کې يې يو څه توپير شته او ښايي چې لوېديځې، ختيځې او مرکزي يا منځنۍ لهجې ونومول شي، خو چې په ختيځه لهجه کې پېښورۍ لهجه هم راځي، خو په ننگرهارۍ لهجه کې نه شي راتلای. د وزيرو لهجې ته څلورم اساسي گروپ ويل هم کوم پوخ دليل نه لري. وايي چې د (ښ، ږ) په غږونو کې وزير هم د کندهارۍ يعنې لويديځې لهجې تابع دی. البته په نورو ډېرو شيانو کې يو تر بله سره توپير لري.
ژبه او لهجه: د ژبې او لهجې په منځ کې توپير کول دومره جنجالي خبره نه ده. ژبه د يوې ونې د تنې او مونږ حکم لري او لهجې يې د څانگو او ښاخونو سره مشابې کېږي.
د ساري په توگه عربي ژبه د ټولو عربو شريکه ژبه ده، خو لهجې يې د هېواد او جغرافيې بدلون په وجه سره بېلې دي او په دغه اساس د مصر، شام، عراق او سعودي عربستان لهجې سره بېلې گڼل کېږي. دغه په اساسي توگه د لهجو ترمنځ اختلاف له دوو خواو څخه څرگندېږي.
۱– يوه غږيزه خوا ده چې په يوې کلمې کې د ويون او غږونو شکل بدل شي. لکه: وشو، وسو، موږ، موژ، ميژ او بله خوا د يوې کلمې د معنا او مفهوم اختلاف دی لکه: ډنگر چې په يوې سيمه کې د خوار په معنا دی او په بله سيمه کې د څاروي معنا ورکوي، خو ځينې کسان لغوي او گرامري اختلافونه هم د لهجوي اختلاف په لړۍ کې راوړي او هر وختې د خپل مطلب د ثابتولو لپاره د لغوي اختلاف له مثالونو څخه کار اخلي.
د پښتو اصلي او فرعي لهجې:
تر اوسه پورې موږ په ټوليز ډول د لهجو په اړه خبرې وکړې او د پښتو د لهجو په باب مو د ځينو پوهانو نظريې راوړې.
اوس غواړو چې خپله څېړنه هم په لنډ ډول تاسې ښاغلو ته وړاندې کړو.
د پښتو اصلي لهجې په دريو ډلو وېشل کېږي.
۱– لويديځه لهجه: دې لهجې ته کندهارۍ لهجه هم وايي او د نرمې او پستې لهجې په نامه هم يادېږي او (ښ، ږ) په کې د (ش، ژ) سره نژدې ويل کېږي.
د دې لهجې يوه بله لويه ځانگړتيا دا ده، چې په مرستندويه افعالو کې(ش) په (س) باندې اوړي لکه: وشو، شوی دی، شته)، د (وسو، سوی دی، سته) په ډول وايي.
۲– منځنۍ يا مرکزي لهجه: په منځنۍ يا مرکزي لهجه کې (ښ، ږ) په خپل اصلي غږ ويل کېږي. د دې لهجې د ويلو سيمې غزني، وردگ، کټواز او پکتيا برخې دي.
۳–ختيځه (شرقي) لهجه: د دې لهجې د ويلو سيمه ننگرهار او د کوزې پښتونخوا زياتې سيمې دي. په دې لهجه کې (ښ، ږ) د (خ،گ) د غږونو په شان يا ورسره نژدې ويل کېږي.
د وزيرو لهجه: د وزيرو لهجه د (ښ، ږ) په غږونو کې د کندهارۍ لهجې په لاره درومي، خو په نورو شيانو کې د

مرکزي لهجې سره نژدېوالی څرګندوي.
د وزیرو د لهجې ښکاره نښې نښانې دا دي:
الف: د منځ او پای الف په (و) اوړي لکه: (کال، پلار، کابل) چې د (کول، پلور، کوبل)په ډول یې وایي.
ب: د منځ (و) یې په (ی) بدلوي لکه: (مور، لوند، توت) چې د (مېر، لیند، تیت) په شان یې وایي. په دې خاصیت کــې ورسره د پکتیا او مرکزي لهجې ځینې سیمې هم شریکې دي.
فرعي لهجې: د پښتو ژبې فرعي لهجې د قومونو او سیمو د بېلوالي په وجه یو تر بله توپیر پیدا کوي، خو په اصل کــې د اصلي او بنسټیزې لهجې سره اړیکه لري. دغه فرعي لهجې په وروسته ډول ښودل کېږي:
د کاکړو لهجه:په ځینو شیانو کې د کندهارۍ لهجې سره او په ځینو کې د مرکزي لهجې سره نژدېوالی لري. د ســاري پــه توګــه دغه لهجه کې هم د مرکزي لهجې په شان (ږ) په (ز) بدلیږي لکه: (ږوند، ږبه، ږمی) چې د (زوند، زبه، زمی) په ډول ویل کېږي.
د ختیځو لهجه:د (ښ، ږ) په ویلو کې د کندهارۍ لهجې سره سمون خوري.
د وردګو لهجه: په ټولو خواوو کې د مرکزي لهجې یوه ځانګه ګڼل کېږي. خو یوه ځانته بڼه هم لري. په دې لهجه کــې مېلمه ته (ولمه) او مرږ ته (مرړز) وایي. موټېر د وزیرو د لهجې په شان مېټېر بولي.
د منګلو، ځاځیو، ځدراڼو لهجې: دا لهجې هم د مرکزي لهجې په کتار کې راځي او ځانته ځانګړې رنګ هم لــري. د ســاري پــه توګه منګل (څنګه)؟ د (څرګه)؟ په ډول وایي. ځاځي او ځدراڼ (راځه اوځي) د (راڅه اوڅي) په ډول استعمالوي.
د احمدزیو لهجه: په دې لهجه کې (ږ) په (ز) اوړي او (ش) په (س) بدلوي لکه چې (ږبه، ږوند) یې (زبه، زوند) او تش، مشر) په کې (تس، مسر) ویل کېږي. دغه لهجه هم د مرکزي لهجې په لړکې راځي.
د مروتو او بنګښو لهجه: په ډېرو غرونو کې د مرکزي لهجې سره نژدېوالی لري، خو په ځانګړي ډول (کښی) پــه (چ) بدلوي لکه چې کښېنه (چېنه) بولي. دغه شان (څ) په (چ) اړوي او څرنګه د (چرنګه) په شان وایي.
د اپریدو لهجه: دا لهجه په ځینو ځایو کې د مرکزي لهجې سره او په ځینو ځایو کې د ختیځې لهجې ســره نژدېــوالی لري. د ساري په توګه په ځینو ځایو کې (الف) په (و) بدلوي لکه چې راشه (روشه) بولي. خو ځانګړی رنګ یــې دا دی چې د جمع مخاطب ضمیر په (و) بدلوي او (خورئ، راځئ) د (خورو، راځو) په بڼه وایي او (راوړه) راوړه بولي. پــه دې لهجه کې د (شم) تکیه کلام ډېر دی.
د خوګیاڼو لهجه: دا لهجه ختیځې او مرکزي لهجې ترمنځ پرته ده او د دواړو نښې نښانې پکې ښکاري، خو ځانته بڼه یې دا ده چې (زور) په (زیر) او (ی) په بدلوي چې (ولې) ته (ویلې) ورشه ته (وېرشه) وایي او خولې (خویلې) بولي.
د شینوارو لهجه: شینواري د خوږیاڼو په خلاف ( ی او زېر) په (زور) بدلوي او (ورمېږ) ته (ورمږ) او (کېږي) ته (کږي) وایي. په دې لهجې کې هم د مرکزي او ختیځې لهجې نښې نښانې لیدل کېږي.
د باجوړ لهجه: د ختیځې لهجې په کتار کې حسابیږي، خو په خاص ډول د (غ) په ځای (ګ) وایي لکه چــې غــاښ، غوښه (ګاښ، ګوښه) بولي. دغه شان (تښته) په څښته) بدلوي.
د باجوړ د سالارزو په لهجه کې یوازې په (کړی دی) کې ( ړ) په (ل) بدلیږي او (کلی دی) ویل کېږي.
د یوسفزو لهجه: دا لهجه د ختیځې لهجې یوه مشهوره لهجه ده، خو ځانته ځانګړنه یې دا ده چې (څ) پــه (س) اوړي او څوک (سوک) بولي.
د اشنغر لهجه: په دې لهجه کې زورکۍ واله (ۍ) په نرمه (ی) بدلیږي او (څوکۍ، ډوډۍ) ته (څوکی، ډوډی) وایي.
د مومندو لهجه: دا لهجه د ختیځې لهجې په کتار کې راځي، خو په وینا او آهنګ کې له دغو وړاندې لهجو څخه درنــده ده. د مومندو په لهجو کې دغوچې تکیه کلام زیات استعمالیږي. په دې لهجه کې چوپ شه، جوب شه ویل کېــږي او د (ق) ویون پکې ډېر دی لکه (توده، قیده) او نور.